بسم الله الرحمن الرحيم

## ځانګړ تياوي:

نوم :ابوهريره رضی الله عنه

ليكوال :محمدعلي الدوله

فارسي ژباړن: محمد ګل ګمشادزهي

پښتو ژباړن:عبدالمتين "متين"

کمپوز: ريان علمی مرکز

# لړلیک

# هيله او مننه

درنو لوستونکو! مخ ته پروت کتاب مو چي د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د نژدې ملګري او ستر صحابي حضرت ابوهريره رضی الله عنه ژوند، سيرت ، کړه وړه او ... پکي ځيړل شوي دي يوه ورځ راته يوه ملګري چي له نيټ نه يې راااخستی وو، راکړ . تر لږ لوستلو وروسته مي هوډ وکړ چي پښتو ته يې واړوم،خو داچي نه مي تر اوسه ژباړه کړې وه اونه مي ځان دهغې وړ باله خو ميني يې دې ته وهڅولم چي دا کار وکړم.

کتاب د کمپيوټر په يوه پروګرام کي او ماې په بل هغه کي ژباړه شروع کړه، د ژباړي وخت اوږد نشواو نژدې په دوو اونيو کي له نورو کارونو سره يو ځای خلاص شو.

درنو لوستونکو! څنګه چي مي مخکي وويل، تر اوسه مي ژباړه نه وه کړې، نو ممکن ډيري تېروتني ولري، هيله ده غذر مو ومنئ.

په پای کي د خپل مشر تره له کشر زوی بشير احمد ريان نه مننه کوم چي د کتاب په کتلو، ډيزاين او چاپ کي يې تر ماډيري منډي کړي دي، کور يې ودان او له الله تعالی نه ور ته اجرونه غواړم.

ستاسو د کاميابي په هيله.

عبدالمتين متين

۲۰۰۹مارچ

## ډالی

✶ هغه چا ته چي د انسانيت د ستر لار ښود صلی الله عليه وسلم او د هغه د ملګرو د ژوند او کړنو په رڼا کې خپلې چارې پر مخ بيايې.

✶ خپل پلار او ترونو ته مي چي تر اوسه يې زما غوښتنو ته په نه ځواب نه دی راکړی.

# دو سي ځوان

عبدالشمس بن صخر، له سلګونو عرب دوسي ځوانانو څخه يو وو چې ديمن په يوه څنډه کې اوسېده. چا ورته پام نه کاوو، ځکه يتيم او فقير وو. په دوولس کلنۍ کې د پلار له نعمت څخه محروم او موريې د هغه سرپرستي په غاړه واخسته. ډېرى کسانو په ابوهريره باله، لږ شمېر هغو په عبد شمس پېژاند. ابوهريره د هغه مستعار نوم وو چې کوراو خپلوانو ورته پرې غږ کاوو او په دې نوم مشهور شوی وو. هغه پخپله دا نوم خوښاوو، ځکه دې نوم يې د پلار ياد او خاطره په زړه کې ژوندۍ کوله چې په وړوکوالي کې د هغه له نعمت څخه محروم شوی وو.

کیسه داسي وه چي عبد شمس په ماشومتوب کي د یوې کوچنۍ او صحرایي پشي سره زیاته مینه درلوده. د ورځي به یې په غېږ کي نیوه او چي د مال په پوونه به بوختوو، له هغې سره به یې لوبې کولې او د شپې له خوا به یې د ونې په ډډه کي پرېښوده. بله ورځ چي به بیا صحرا ته تو هغه به یې پیدا کوله او په غېږ کي به یې نیوله.

دا کار یې تکراراوو، پلار یې له دې امله دا کنیه (ابوهریره) په هغه کېښوده. ابوهریره سره له دې چي له خپل پلار سره کم وخت تېر کړی وو، ولي شوخ طبعي، د ښکلو نکتو بیانونه او ګپ شپ یې له هغه څخه په میراث وړی وو، نو ځکه یې ملګرو ژر ورسره مینه کوله او هغه یې ملګری کاوو، خو فقیري او یتیم والي هغه د خلکو په وړاندي کم اهمیته ګڼلاوو. د هغه مقام کمېده، ارزوګانې او لوړ پروازونه یې له مینځه ور وړل.

کلونه تېر شول، هغه همداسي شپني کوله، د عمر شپې یې په دښتو، غرونو او درو کي په ګرځېدا تېرېدې. کله یې په ژورو درو، کله به د لوړو غرونو په څوکو او کله به په پلنو دښتو کي چي له هر لوري به غرونو چاپېر کړې وې، لیدل کېده.

له یوائې والي سره یې مینه وه، ډېر وخت به له خپلو شپنو ملګرو لیري ګرځېده، یوازي کښېناست او د خپل نفس تزکیه یې کوله. فکر ته یې تازه والی او ښکلا وربښله. شاوخوا یې

په غور تر نظر لاندي نيوه. د شپې يې د اسمان له ليدنې خوند اخيست. د سپوږمۍ ښکلې منظرې د هغه زړه له خوښۍ ډکاوو. په مياشت پټو شپو کي د ځلاندو ستورو ننداري د هغه حيرانتيا راپارولهاو هغه يې له ځانه ناخبراوو ،تر ټولو ستورو يې د سهيل ستوری ډېر خوښاوو ، ځکه سهيل هغه ستوری وو چې يمنيانو يې تل په خپلو شعرونو کي ښکلا بيانولهاو د هغه ژېړ بخون نارنجي ځليدونکی رنګ يې دخوښۍ وړ وو.

لکه يو شاعر چي وايي:

وسهيل کوجنة فی اللون      وقلب المحب فی الخفقان

(سهيل د معشوق په زلفو او سترګک وهل يې دعاشق د زړه په نارامۍ کي پاته کيږي.)

د ورځو ګرځېدلو، دمياشتو، فصلونو او کلونو تېرېدلو د ابوهريره په فکر او زړه کې بل ډول تاثير واچاوو، ځکه هغوی ټولو فکر کولو او تدبر ته هڅاوو او هغه بتان چي قريشو لمانځل او دهغوی په وړاندي يې احترام کاوو، ده ته خوار او کم ارزښته ول. هغه داسي وده کوله چي د ځمکي او اسمان له خدايه جل جلاله پرته چي ډېری عربانو پرې ايمان درلود، دبل څه احترام ونه کړي. عربانو ايمان درلود چي خدای جل جلاله هر څه پيدا او موجود کړي دي. ولي خپل ايمان يې بتانو ته په غاړه ايښودنه چي د خدای جل جلاله شريکان يې بلل، فاسد کړی وو.

ابوهريره وده وکړه او ځوان شو، البته پوه او د توجه وړ. خدای جل جلاله هغه ته عقل، لوی بصيرت او پوه زړه ورکړی وو. هغه ددې ځانګړتياوو په درلودلو د نورو دوسي ځوانانو څخه غوره وو. په هغوی يې برتری درلوده او احساسوله يې چي دا وړتياوی ورته خدای جل جلاله د نېستي، تنګ لاسي، بې پلاري او په قوم کي د هغه د ټيټې رتبې په بدل کي ورکړې دي، خو قوم د هغه امتيازاتو ته پاملرنه نه کوله، ځکه ناپوهي د هغوي په ټول ژوند پرده غوړولې وه. د يادو شويو ځانګړتياوو په درلودلو سره بيا هم ابوهريره و نتوانېد چي خپل مقام د قوم په وړاندي لوړ کړي او همداسي نوم ورکی يې ژوند کاوو.

لکه څنګه چي وويل شول، ابوهريره وړوکوالی د دوس د قبيلې په منځ کي تېر کړ، لمړی د پلار د مهرباني او محبت تر سيوري لاندي شپون وو، بيا نا توانه يتيم او وروسته پوه، قوي او شريف ځوان شو. سره له دې چي نېستمن وو، خو قناعت يې درلود. لوی او له هر ډول ناوړه رويې پاک شخص وو. لومړی يې د قوم نظريو او اعتقاداتو ته وکتل خو د هغوی کړه او کړنلاره يې خوښه نه شوه. په داسي څه پوري ګرځېد چي مات زړه او تږيو شونډو ته يې ارامتيا او لمدوالی وبښي او سرګردانه عقل يې رهبري کړي. هغه د سالمي عقيدې او ټينګ دين په لټه کي وو. ايا د هغه لپاره لاره وه؟ هغه منتظر پاتي شو.

## مسلمان ځوان

د دوس قبيله د خپل بت(ذی الخلصه) په لمانځنه لار ورکې شوې وه لکه څنګه چې نور عربي قبائل د خپلو بتانو په فتنه او فساد کې راګير شوي وو. د دوس قبيلې ياد شوي بت ته احترام درلود او عبادت يې کاوه، باوريې درلود چې بت کولای شي دوی ته ګټه او تاوان ورسوي، هغوی ته څه وبښي او يا ورڅخه کوم خطر لري کړي او د هغوی د ژوند په تېرېدونکو ښو او بدو پېښو کې تاثير واچوي. له دې امله يې خپل بت ته ښکلی ځای جوړ کړی وو او يو کس يې ورته د ساتونکي او خدمتګار په نوم ټاکلی و، چې د بت پالنې تر څنګ يې سيلانيانو ته ښه راغلاست هم وايه. د دوس د قبيلې ټول وګړي له زاړه تر واړه د هغه ليدلو ته تلل، هغه ته

يې ډالۍ وړاندي کولې، د هغه د خوښي لپاره يې له نذر کړيو حيواناتو سرونه پرې کول. د کال په ځانګړيو ورځو کي د ذی الخلصه په وړاندي درېدل، هغه ته يې د احترام او تکريم مراتب وړاندي کول، د هغه په چاپېر يې طواف کاوو او ځانونه يې په هغه پوري مونښل. کله چي ابو هريره ليدل چي قوم يې داسي کارونه کوي، هغوی يې ناپوه، بې علمه او له حقيقت څخه لري بلل، له ځان نه به يې پوښتل: ولي هغوی د ډبرې په چاپېر ګرځي راګرځي؟

سره له دې چي له خپل قوم سره د هغوی بت ته تو، اما مينه او اړيکي يې چي نسبت هغوی بت ته درلودې او هغه يې خپل خدای باله، ده له ځان څخه نه ښودې او د هغوی په ادابو او رسومو کي يې ګډون نه کاوو.

يوازي د تفريح او ساعت تيري لپاره هلته ورتو. څه چي به يې ليدل يا اورېدل پام يې نه ورته کاوو. هغه ملګری نه درلود چي د قوم په اخترونو او جشنونو کي ګډون ونکړي، خو مور يې هڅاوو، د ذی الخلصه له قهر څخه يې بېراوو او ټينګار يې پرې کاوو چي خاماخا په مراسمو کي ګډون وکړي.

نو ځکه يې د مور د ډېر ټينګار له امله پکي ګډون کاوو، خو د قوم په اندونو يې باور نه درلود، له بل لوري يې جرآئت نه کاوه چي د هغوی له کړنلارې منکر او د هغوی کارونه جاهلانه وبولي، که يې د هغوی کارونه ټوکې بللای څه يې نه درلودل چي د هغوی ځای ونيسي او قوم د هغه په لور وبولي.

ذی الخلصه يو ازينی بت نه وو چي دوی يې احترام او تعظيم کاوو (ولي ډېره پاملرنه يې هغه ته کوله)، بلکې د ذی الکفين او ذوشریٰ په نومو نو دوه نور بتان هم همداسي ول.

د دوس قبيلې د هغوی هر يوه لپاره ودانۍ جوړه کړې او خدمتګاران يې ورته نيولي وو، د هغوی لپاره يې هم ورځي معلومې کړې وې، چي په هغو ورځو کي ورتلل، د هغوی په وړاندي يې عبادتونه او اطاعتونه کول او هغوی ته يې احترام کاوو.

ذولکفين عمرو بن حممۀ الدوسی جوړ کړی وو او د هغه له مړيني وروسته يې زوی حبيب بن عمرو ساتنه کوله او د بت اړوند کارونه يې سرته رسول.

د ذوالشری بت لپاره يې په ښه ځای کي ودانۍ جوړه کړې او ډيره ځمکه يې د هغه اړوند ګرځولې وه، چي ښکلی ليدځای يې درلود، په دې ترتيب چي اوبه له يوې چينې چي د غره په ملا کې يې ځای درلود، روانې وې او د ذوالشری له څنګ څخه تېرېدې، خلکو به لومړی د چينې په اوبو ځان مينځه او بيا به ذوالشری ته حاضرېدل. ابو هريره چي څنګه لوی بت، ذی الخلصه سپک او بې ارزښته ګاڼه همدارنګه يې همدغو دوو ته هم کومه پاملرنه نه کوله.

کله چي به يې ليدل د قبيلې رئيس او د هغوی مشر (حبيب بن عمرو بن حممه) يې قوم ذی الکفين ته بيايي، دهغه لپاره د دغو دوو بتانو سپکوالی او ناڅيزتيا نوره هم زياتېدله. ځکه

په کراتو يې له هغه نه اورېدلي وو چې ويل به يې: زه پوهېږم چې نړۍ پيدا کوونکی لري خو نه پوهيږم چې څوک دی؟

ابوهريره له ځان سره ويل: موږ نه پوهېږو چې د نړۍ پيدا کوونکی څوک دی، نو بيا ولې د مخلوق او پيدا شوي څيز عبادت وکړو؟

په دې کش مکش کې د دوس د قبيلې له مشر، پوه او هوښيار شاعر طفيل بن عمرو څخه د خلکو په مېنځ کې حيرانوونکی داستان خپور شو. په داسي حال کي چې هغه يې يوه عجيبه او غريبه پيښه بلله، په پوره ادب او زور يې يوه او بل ته بيانوله. دپيښي تفصيل د طفيل بن عمرو په وينا داسي وو:

(د عمرې د ادا کولو لپاره مکې ته لاړم، هلته مي د بنی هاشمو د يو ه کس سره وليدل چې ويل يې "زه د خدای جل جلاله استازی يم، خلک توحيد او يو والی ته رابولم." ما په هغه ايمان راووړ او له هغه مي وغوښتل چې ماته اجازه راکړي تر څو خپل قوم ته لاړ شم او هغوی اسلام ته راوبولم.

همدارنګه له هغه مي وغوښتل چې ماته دعا وکړي چې خدای جل جلاله زما مرسته په يوه ښکاره دليل سره وکړي څو زما د خبري د ريښتينتوب دليل وي. پيغمبر صلی الله عليه وسلم ماته دعا وکړه او زه راغلم، کله چې خپلي سيمې ته ورسېدم او له هغې غونډۍ نه چې زما دقوم کورونو ته نژدې وه راکښته کيدم، روښانه نور مي د امسا له سر څخه وځليد،

د خپل قوم څو کسه چې په هغه ځای وو دا نور يې وليد، تر څو چې هغوی ته ورسېدم ورته مې خپله کيسه وکړه او هغوی مې اسلام ته وبلل، متاسفانه هيڅ يوه رېښتنی ونه ګڼلم، له پلار او ښځې پرته مې هيچا زما دعوت ونه مانه.)

ابوهريره ددې خبر له اورېدلو سره ټکان وخوړ او دومره خوشحاله شو چې تر هغه وخت پورې په کومه خبره دومره نه وو خوشحاله شوی. که له موره نه ډارېدای، د هغې ورځې له غرمې مخکې کورته ګرځېده په کومه چې يې يوه چوپان ملګري ورته دا کيسه اورولې وه، طفيل ته ورتلی تر څو د هغه داستان د هغه له خولې واروي، خو غوره يې وبلله چې نيمه ورځ نوره هم تېره، د خپل همېشني عادت سره سم په ټاکلي وخت کور ته لاړ شي او له هغه وروسته طفيل ته ورشي، د شپې ورسره ووينې او کيسه يې واورې.

د هغې ورځې له لمر لوېدا وروسته يوه شېبه له مور سره کښېناست او ترې يې اجازه وغوښته څو طفيل ته لاړ شي او د داستان څرنګوالی د هغه له خپلې خولې واورې.

مور يې وويل: "لاړ شه، خو پام کوه د هغه په څير بې دينه نشې، خپل دين بدل نکړې او د هغه چا کار چې ټولو خلکو عاقل او هوښيار باله تکرار نه کړې."

ابوهريره لاړ او د طفيل کور ته ورسېد. د داخلېدو اجازه يې وغوښته. طفيل ښه راغلاست ورته وو ايه او په ورين

تندي یې هر کلی و کړ، هغه ته یې په نرمه بستره د کېناستلو اشاره و کړه.

ابو هریره وویل: " کاکاجانه! راغلم، تر څو هغه هاشمی کس چې ته ورسره په مکه کي مخ شوی یې او ادعا کوي چې د خدای استازی دی را وپېژنې."

طفیل وویل: "ګرانه وراره! په خدای قسم چې هغه په رښتیا پیغمبر دی. ما په هغه ایمان راوړی او د هغه پیروي کوم. ځکه انسان حق او حقیقت ته بولي، ته پوه او هوښیار سړی یې او زه خبر شوی چې په ذی الخلصه کي څه نه وینې. نو د خدای جل جلاله په دین چې د خپرولو لپاره یې وروستنی پیغمبر موږ ته را لېږلی دی، ایمان راوړه."

ابو هریره وویل: " هیله کوم لومړی راته د خپل ایمان راوړلو کیسه وکړې، ځکه د اورېدلو یې ډېره مینه لرم."

طفیل وویل: " زما د ایمان راوړلو کیسه داسي وه چې د عمرې د ادا کولو لپاره مکې ته لاړم. هلته د قریشو د ډلې څو وګړي راته راغلل او ویې ویل: ای طفیله! ته زموږ خاوري ته راغلی یې، دلته یو کس د پیغمبرۍ دعوه کوي او موږ یې ستړي کړي یو. نه پوهېږو له هغه سره څه ډول رویه وکړو، زموږ یووالی یې له منځه وړی، زموږ د دستورونو مانع ګرځېدلی، خبري یې سحر دي، د پلار او زوی، مېړه، ښځې او ورور تر منځ جدا والی راولي. ورور له وروره او ښځه له مېړه جدا کوي، ډارېږو هسي نه هغه څه چې موږ ته مخ کي

راغلي تا او ستا قوم ته درنشي. هڅه وکړه هيڅکله له هغه سره خبري ونکړې، خبرو ته يې غوږ کښېنږدې.>

په خدای قسم دومره يې راته وويل چي هوډ مي وکړ د پيغمبر صلی الله عليه وسلم هيڅ خبره به نه اورم او نه به ورسره خبري کوم، ان تر دې چي غوږونه مي له پنبې ډک کړل، څو مي د هغه خبري غوږ ته و نه رسيږي.

د هغې ورځي په سهار چي مسجد ته لاړم، د خدای رسول صلی الله عليه وسلم مي وليد چي د کعبې تر څنګ ولاړ او لمونځ يې کاوو. هغه ته نږدې شوم او څه خبري مي يې واورېدې، ډېر ښکلی او اورېدونکی کلام وو. له ځان سره مي وويل: مور مي عزا ته کښېني، په خدای قسم چي پوه سړی او هوښيار شاعر يم، ښه او بد يو له بله پېژندلای شم او څه رانه پټ نه دي، نو څه کولای شي چي ما د هغه د خبرو له اورېدلو را وګرځوي!؟ هغه څه چي وايي که ښه وو منم يې او که بد وو ردوم يې.

ځکه تم شوم، څو د خدای رسول صلی الله عليه وسلم کور ته وګرځېد، زه يې هم له شا روان شوم، کور ته يې ورسېدم، هغه صلی الله عليه وسلم کور ته ننووت، زه هم په هغه پوري داخل شوم او ومي ويل: اې محمده صلی الله عليه وسلم! قوم دې ما ته داسي او هاسي وويل او دومره يې درڅخه ډارولم چي غوږونه مي له پنبې ډک کړل څو ستا خبري وانه ورم، خو د خدای خوښه دا وه چي ستا څه خبري واورم، وينم

چي ښې خبرې دي، نو هغه څه چي له اسلامه په خپل واک کې لرې راته ويې وايه.

رسول الله صلى الله عليه وسلم اسلام راته وړاندي کړ او د خدای جل جلاله د کلام څو ایاتونه يې راته تلاوت کړل. په خدای قسم چي تر هغه مهاله مې داسي ښکلی کلام نه وو اورېدلی او تر هغه مي عادلانه دستور نه وو ليدلی. هغه وخت مسلمان شوم، د حق شاهدي مي ورکړه او ومي ويل: اې دخدای پیغمبره! زه په خپل قوم کي ځای لرم او خبره مي مني، اوس چي هغوی ته روان یم، غواړم اسلام ته يې دعوت کړم، ماته دعا وکړه او له خدایه راته وغواړه چي يوه ښکاره نښه راکړي. تر څو زما د دعوت ملاتړ شي. رسول صلى الله عليه وسلم داسي دعا راته وکړه: "خدايه!! هغه ته نښه او څرګندونه ورکړې."

له انحضرت صلى الله عليه وسلم نه مي اجازه واخيسته او د خپل قوم په لور لاړم. کله چي زموږ کورونو ته څېرمه غونډۍ ته ورسېدم د خدای په امر مي تندي کي د دوو سترګو ترمنځ رڼا پیدا شوه، ومي ويل: خدايه دا نښه چي دي پر ما پېرزو کړه په بل ځای کي يې راکړه، ځکه قوم به مي ګمان وکړي چي د دين د پرېښودلو له امله مسخه شوی يم. هغه وخت رڼا امسا ته نقل شوه. هغه خلک چي د اوبو په چاپېر سره یو ځای شوي وو، دا نور چي پر لکړه مي د څیراغ په څېر راځړېده وليد، يوه او بل ته يې وروښود.

زه ورو ورو لــه غونــډۍ کښــته راغلــم، څــو هغــوی تــه ورسیدم، لـه لیدني او ښـه راغلاست وروسته مي هغـوی تـه خپل داستان ووایه او هغوی مي سلام ته راوبلل ولي هغوی زما خبري ونه منلې او ایمان یې نه راووړ، له هغوی جدا او د کور په لوري روان شوم. کله چي کور ته ورسېدم پلار مي د ښه راغلاست لپاره راغی، ورته مي وویل: پلار جانه له ما څخه لیري شه! زه له تا څخه نه یم او ته له ما څخه. پلار مي وویل: ولي زویه؟ ومي ویل: زه مسلمان او د محمد صلی الله علیه وسلم دین مي منلی دی. پلار ځواب راکړ: زویه! زما دین هم ستا دین دی.

ومي ویل: لاړ شه، ځان و مینځه او پاکي جامې واغونده. بیا راشه څه چي مي زده کړي تاته یې دروښیم.

بیا مي ښځه راغله هغې ته مي هم د پلار په څېر ځواب ورکړ، هغه هم مسلمانه شوه.

وروسته مي د قبیلې خلک اسلام ته راوبلل، خو هغوی زما دعوت ونه مانه.")

طفیل خبري کولې او ابوهریره ورته غوږ نیولی وو. د هغه خبري یې په زړه او غوږونو اورېدې، کله چي د طفیل کیسه پای ته ورسېده د ابوهریره څېره له زیاتې خوشحالي د برېښنا په څېر وځلېده او ویې ویل: ای ابو عمرو! مهرباني وکړه هغه خبري چي په دې پیغمبر صلی الله علیه وسلم نازلي شوي او تاته یې ویلي، راته ووایه چي وایې ورم او خوند ترې واخلم.

طفیل و منله او یو څو ایاتونه یې ورته تلاوت کړل. ابوهریره ونشوای کولای چې خپل ځان کنترول کړي، چیغه یې کړه او ویې ویل : څومره ښکلې او با عظمته کلمې دي.

طفیل همداسې ادامه ورکړه .

ابوهریره بیا چیغه کړه او ویې ویل: "ابوعمرو ! بس دی.

په خدای قسم تر اوسه مې ددې کلام په څېر کوم کلام نه دی اورېدلی او له هیڅ عرب نه دا امید نه لرم چې ددې په څېر کلام یې ویلی وي، دا خبري د انسان کلام نه دی. زه شاهدي ورکوم چې له خدای جل جلاله پرته معبود نشته او محمد د هغه استازی دی. اوس زه هم ستا په دین شوم او په هغه څه مې ایمان راوړی چې تا پرې راوړی دی."

طفیل د ابوهریره له ایمان راوړلو څخه خورا خوښ شو او ویې ویل د خدای شکر دی چې ته یې په اسلام مشرف او د دوژخ له اوره یې نجات درکړ."

ابوهریره، طفیل ته وکتل او ویې ویل: " اوس راته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سیرت او دعوت په اړه ووایه چې د خپل قوم په منځ کې څنګه وو؟ "

طفیل وویل : " خدای تعالی جل جلاله لس کاله وړاندې هغه په پیغمبری مبعوث کړ او لومړني ایاتونه چې یې ورباندې نازل کړل ، دا دی :

بسم الله الرحمن الرحیم

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ 1 خَلَقَ الإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ 2 اقْرَأْ وَرَبُّكَ الأَكْرَمُ 3 الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ 4 عَلَّمَ الإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ 5 ژباړه : "ولوله دخپل رب په نوم سره چي د ټولو جوړونکی دی. جوړ يې کړ انسان د چکه وينې څخه. لوله او ستا رب لوی کريم دی چا چي علم وښود په قلم سره .ويې ښودل انسان ته هغه څه چي دی نه پرې پوهېده."

خدای تعالی جل جلاله خپل پيغمبر صلی الله عليه وسلم د قريشو د غوره خلکو يعنی بني هاشمو څخه غوره کړ. هغه د مور په ګېډه کي وو چي پلار يې وفات شو. د پلار له مړيني وروسته دهغه سرپرستي خدای جل جلاله دهغه په نيکه عبدالمطلب واچوله. له عبدالمطلب وروسته ابو طالب دهغه ساتنه او پالنه په غاړه وا خسته، تر څو چي لوی او ترې جدا شو. د وحی له نزول وروسته يې خلک په پټه اسلام ته دعوت کړل، په دې وخت کي څلوېښت شا وخوا نرانو، ښځو او ماشومانو پرې ايمان راووړ.

بيا يې دخدای جل جلاله په امر دعوت ښکاره کړ. قريشو په هغه باندي ملنډې وهلې او ملګري يې ورځورول، تر څو دوی مجبور شول د خپل دين د ساتني په خاطر حبشې ته هجرت وکړي.

هو محمد صلی الله عليه وسلم خلک توحيد يو والي ته بلل او د ډبرو او بتانو له عبادت څخه راګرزول. همدارنګه هغوی يې ريښتيا ويلو، امانتداری، صله رحمي، ښه ګاونډيتوب،

له محارمو ځان ساتلو او دوينو د تويولو د مخنيوي خلکو ته امر کوي او د دراوغو د شاهدي ، ديتيم د مال د خوړلو، په پاک لمنو ښځو پوري د تهمت ويلو او نورو بديو خلک را منع کوي. ويل يې چې صرف د خدای عبادت وکړئ او څوک مه ورسره شريکوئ. لمونځ وکړئ، خپل مالونه په ښکو لارو کې ورکړئ. اې ابوهريره! د خدای جل جلاله د رسول صلی الله عليه وسلم په اړه بايد ووايم چې تر اوسه مې د هغه په څېر څوک پوره او ښکلی نه دی ليدلی.

څېره يې ښکلې او ټول خويونه يې ښک دي. بدني نيمګړتيا نه لري، ښکلی، ريښتينی، امانتدار، نرم خويه او هميشه موسکی دی. هر څوک چې يې ويني ملګری کېږي يې او باور ورباندي کوي، که څه هم دين يې نه وي منلی. ما ترې غوښتنه وکړه چې له ما سره لاړ شي او زما قوم اسلام ته دعوت کړي. خو هغه ونه منله او ماته يې وويل چې خپل قوم ته لاړ شي، هغوی اسلام ته راوبولي او په قوم (قريشو) باندي د هغه له کاميابي وروسته ورسره يوځای شي.

ابوهريره يو ځل بيا طفيل ته وکتل او ويې ويل: شاهدي ورکوم چې له الله جل جلاله پرته بل معبود وجود نه لري او محمد صلی الله عليه وسلم د هغه استازی دی. زه به مې قوم دې شاهدي ته دعوت کړم، څو خدای جل جلاله هغوی ته له ناپوهي، شرک او بت پرستي څخه خلاصون ورپه برخه کړي.

د خدای شکر ادا کوم چي زما سترګي، غوږونه او زړه يې اسلام ته هدايت کړل. اې ابوعمرو! تاته دي هم الله تعالی د خير بدله درکړي چي زما دهدايت زمينه دې اسانه کړه.

ابوهريره ډير ژر هغه څه ياد کړل چي له طفيل نه يې زده کړي وو. لمونځ کول يې له هغه زده کړل او په ډير ښه ډول يې ادا کاوو. ابوهريره له دې وروسته خپل قوم ته د اسلام او توحيد بلنه ورکړه، له شرک او بت پرستي څخه يې منع کړل.

بل پلو کله چي يې د قبيلې وګړي پوه شول چي ابوهريره مسلمان شوی او د دوی له دين څخه اوښتی نو يې دهغه په ځورولو شروع وکړه او په هغه څه چي ده کړي وو ملامتاوو يې. دټولو په سر کي يې مور ځای درلود چي تر ټولو سخت دريځه بلل کيده، مور يې ټينګار کاوو چي ابوهريره خپل نوی دين پرېږدي او د پلرونو اونيکونو دين ته بېرته وګرزي.

ابوهريره دمور په ځواب وويل: "مور جانې! کوم دين چي مي منلی مکمل او په حق دی. خدای جل جلاله له دې دين پرته بل دين نه مني."

مور يې نه منله او همېشه يې ځوراوو. اخر ابوهريره وروستنی ځواب ورکړ او پوه يې کړه چي هيڅکله به خپل نوی دين بدل نه کړي او په دنيا کې به يې په هيڅ څيز ور نه کړي.

ابوهريره او طفيل، اسلام ته د دوی د قوم په دعوت کي ډېر کوښښ وکړ، خو هيچا يې دعوت ونه مانه. ځکه بت پرستي د هغوی په مېنځ کي زور موندلی وو، بدۍ او ناوړه

کارونه هغوی کي دې ځای ته رسېدلی وو چي له اخلاقي ښېګڼو نه یې منع کول.

طفیل له دې بې ګټو هڅو په تنګ شو. ځکه هغه شریف او مخور کس وو او هیله یې درلوده چي قوم به یې دعوت ومني، خو دا هیله یې پوره نشوه. د یوه کال په جریان کې یې له پلار، ښځي او ابوهریره پرته بل چا دعوت ونه مانه.

نو ځکه مات او اریان پاتي شو، نه پوهېده چي کوم کار ته لاس واچوي او څه وکړي؟

یوه ورځ ناڅاپه طفیل ابوهریره ته وویل غواړم رسول الله صلی الله علیه وسلم ته لاړ شم او د خپل قوم شکایت ورته وکړم.

د ابوهریره زړه دې خبري د اورېدلو څخه ټکان وخوړ او طفیل ته یې وویل: ما له ځان سره نه بیایې چي د خدای رسول ووینم او بیعت ورسره وکړم؟

طفیل وویل: قریش په ډېره تېزي له رسول الله صلی الله علیه وسلم او له هغه چا سره چي د هغه مبارک ملګری شي دښمني کوي. ډارېږم که مکې ته راسره لاړ شې، په تکلیف دي نه کړي. قریش زما احترام د مخکنیو اړیکو چي له هغوی سره یې لرم او د هغه حیثیت له کبله چي په خپل قوم کې یې لرم، ساتي. خو ستا په اړه نشم ویلای چي ازار دي نه در ورسوي. نو ځکه ابوهریره پاتي شو او طفیل له مجبوری تنها مکې ته لاړ.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته ورغی او ویې ویل: د دوس قبیله زما په وړاندې ودرېده، نافرماني یې وکړه او له اسلام نه یې مخ واړاوو.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لاسونه د اسمان په لور پورته کړل. طفیل وایي: فکر مې وکړ ان حضرت صلی الله علیه وسلم مې قوم ته ښېرا کوي نو ځکه ډېر خوښ شوم، خو ومې لیدل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم داسې دعا ورته وکړه: " خدایه ! د دوس قبیلې ته هدایت وکړې او هغوی د اسلام په لور راولې."

بیا یې ماته وویل چې خپل قوم ته لاړ شم او اسلام ته یې په نرمۍ سره را وبولم.

طفیل لاړ او په ابوهریره یې زېری وکړ چې رسول الله یې د قوم د هدایت لپاره د خیر دعا وکړه. دواړه د قوم په لور ولاړل او بیا یې د سلام په لور وبلل. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د دعا تر سیوري لاندې د هغوی سرکشیو یې له منځه تللې وې، زړونه یې نرم شوي او د اسلام منلو ته تیار وو. د دوس د قبیلې وګړي ورو ورو د خدای په دین کې شامل شول.

ابوهریره په ۲۳کلنۍ کې مسلمان شو. د اسلام له راوړلو یې څو کاله نه تېرېدل چې یو پوه ځوان شو. خدای جل جلاله یې روزی پراخه کړه. یو غلام یې واخیست څو یې مور او ده ته خدمت وکړي. صرف یو څیز وو چې دده خوب یې وړی وو او دي یې نا کراره کړی وو هغه هم د خدای جل جلاله د رسول

صلی الله علیه وسلم څخه لري والی، ځکه زړه یې د هغه مبارک له میني ډک وو او غوښتل یې څومره چي ژر وي د هغه د پښو خاوري د سترګو رانجي کړي او په څنګ کي یې ژوند وکړي. کله چي به یې د طفیل څخه د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په اړه خوشحالوونکي خبري اورېدې، د هغه مبارک په لور به یې د هجرت ولولې نوري هم تازه کېدې. یوه ورځ طفیل ابوهریره خبر کړ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مدینې په لور هجرت کړی دی او د مدینې وګړیو په بې ساري ډول د هغه ښه راغلاست ویلی، ورباندي یې ایمان راوړی او مسلمانان شوي دي. مهاجرینو او انصارو د یو او بل په مرسته لښکر منځ ته راوړی، په توره او نېزه د اسلام څخه دفاع کوي.

پرله پسې هغه ته له یوه او بله خوشحالوونکې خبرې رسېدې، په قریشو باندي د مسلمانانو کامیابي په بدر او ...

د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د ابوهریره مینه ورځ په ورځ زیاتېدله. په وروستیو کي د احزاب په جګړه کي د مسلمانانو کامیابي د هغه خوشحالي دوه چنده کړه. په ځانګړي ډول دا چي په هغې جګړه کي د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم او ملګرو یې لویه کامیابي په برخه شوه، ځواک یې نور هم قوي شو، باور یې د غرونو په څېر ټینګ شوی وو.

پورته دلايلو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په لور هجرت د ابوهريره مينه وروستي حد ته ورسوله. خو دوو لاملونو دده په وړاندې وجود درلود. يو يې مور او بل طفيل؛ چې ويل يې له قوم سره به نور هم پاته شو څو د مسلمانانو شمېره زياته شي، هغه مهال به ټول يو ځای د خدای د رسول صلی الله علیه وسلم په لور لاړ شو.

ابوهريره له ډيري هڅي وروسته وتوانېد چې خپله مور قانع کړي څو مدينې ته هجرت وکړي. بيا طفيل ته ورغی او هغه يې تشويق کړ چې څومره ژر کيدای شي مدينې ته هجرت وکړي او ورته ويې ويل: اوس چې د خدای په مرسته د دوس د قبيلې په لسګونو وګړي مسلمان شوي، ددې وخت رارسېدلی چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په لور هجرت وکړو، څو دهغه دليدلو په ترڅ کي ورسره يوځای ژوند غوره کړو. اخر طفيل د ابوهريره له خبرو سره موافقه وکړه او ناڅاپه يې د هغو خبرو زېری ورکړ چې ابوهريره يې له اورېدلو په جامو کې نه ځايېده او ويې ويل: تيار اوسه اوس د هجرت وخت رارسېدلی دی.

# مهاجر مؤمن

یو سهار دوسي سپرو مهاجرینو د مدینې په لور حرکت وکړ چي په مخ کي یې طفیل بن عمرو رضی الله عنه دهغوی مشر وو. ابوهریره (رضی الله عنه) یې په څنګ کي روان وواو لـه دې هجرته ډېر خوشحاله وو.

د یون په اوږدو کي یې د حدی ترانې ویلو (هغه ترانه ده چي شپانه یې وایي څو اوښان تېز لاړ شي) یون ته زوږ او ځانګړې حالت وربښلی وو. څو تنو اواز وایه او نورو

ورسره زمزمه کاوو. دا نغمې غرونو، دښتو او درو ته تلې، غبرګون یې بېرته دوی ته راګرځېده، د اوښانو غوږو ته رسېدې او د هغوی چټکتیا یې زیاتوله.

د دوس د قبیلې نور وګړي خورا نا ارامه وو چې ولې د دوی د قبیلې وګړي ورڅخه جدا کیږي او داسې ځای ته ځي چې هیڅ معلومات ورڅخه نه لري. دوی هغه مهال نور هم ناخوښ شول چې ویې لیدل داسې کور نشته چې یو غړی یې له لاسه نه وي ورکړی. مهاجر نژدې له اتیا کورنیو څخه وو چې د کورنۍ له غړو څخه جلا کېدل. دقبیلې یوه غړي وویل: عجیبه ده، دې دین په دوی کي دومره کار وکړ چې د خپل کور کهول پرېښودلو ته تیار دي!

دې خبرې په نورو هم ډېر هېښنده اغېز وکړ او د دې دین په سوچ کي شول چې ولې یې د دوی په ورونو دومره ژور اغېز ودرلود؟ او د دوی د عقل دریڅه یې د ژور فکر لپاره خلاصه کړه؟

ابوهریره (رضی الله عنه) د سپرومهاجرو په منځ کې خپل یون ته ادامه ورکړه او هغه ستومانتیا یې نه احساسوله چې د یون په ترځ کي ورته پیدا شوې وه. سره له دې چې مور یې نیوکه پرې کوله او په کراتو یې ځوراوو. ابوهریره (رضی الله عنه) د نېکبختي احساس کاوه، ورځ له بلي یې خوښي زیاتېدله او په ډېره بیړه له رسول الله

(صلی الله علیه وسلم)صلی الله علیه وسلم سره د لیدلو د شېبې په تمه وو تر دې چې له ډېر لیري نه هم ورباندي ګران وو. هغه ددې حساسي شېبې لپاره څو کاله انتظار کړی وو او اوس هغه مهال را رسېده. دابوهریره (رضی الله عنه) زړه له ډېري خوشحالي لړزېده او د خدای د رسول صلی الله علیه وسلم د مینې څخه ډک وو. په مهاجرینو له لسو ورځو زیاتي تېرې شوې، هغوی همداسي لاري پرې کولې او خپل یون ته یې ادامه ورکوله تر دې چې د حجاز خاورې ته واوښتل.

اوس هغوی له مدینې سره نژدې وو او د احد غر یې له لري څخه لید. خو د لمر لوېدلو وخت راورسېد، روښنایي له منځه لاړه، ښکلی او دنګ غر چې افق یې پټاوو له نظره ووت. هغوی نور هغه تر څنګ نه لید.

سره له دې چې د سپوږمۍ تتې رڼا ټوله فضا په خپله غېږ کي واخسته،بیا هم د هغوی په اوسپنیز هوډ کي کوم تغیر رانه غی، نور هم هوډمن شول، د رسول اللهصلی الله علیه وسلم مینه او محبت یې په زړونو کي وروستي پړاو ته ورسېد. هغوی اوس د مدینې خاوري ته ورسېدل، غړ یې لوړ شو، د خدای شکر وکړئ دا چي دهغه په مرسته خپلې موخې او د خدای د رسول صلی الله علیه وسلم ښار ته ورسېدل. ډېر شکر یې اداکړ.

مدينې د مهاجرينو د نوې ډلې ښه راغلاست وايه، خو هيڅوک يې په ورتګ خبر نه شول. ځکه په مدينه کې څوک نه ول، هغوی خيبر ته تللي وو څو يې کلاوې ونړوي او هغه يهوديان چې په مدينه يې د حملې نقشه کښلې وه او غوښتل يې او سېدونکي يې وځپي، په لار راولي.

مهاجرينو واړول، له اوښانو يې بارونه راکوز کړل، په ځمکه يې خواره کړل، د زياتې ستومانتيا له امله په ژور خوب لاړل، هغه څه چې دوی يې را ويښ کړل د مؤذن غږ وو چې خلک يې د سهار لمانځه ته بلل.

د اذان داواز اورېدل هغوی ته څومره په زړه پوري وو! ځکه لومړی وار يې د خدای د رسول د مؤذن له خولې *الله اکبر* اورېده. له خوبه پاڅېدل، اودسونه يې وکړل او دنبوی مسجد په لور روان شول.

هريوه هيله درلوده چې د خدای د رسول د ليدلو نيکبختي يې په برخه شي، سلام ورته واچوي او بيعت ورسره وکړي.

ابوهريره (رضی الله عنه) تر ټولو وړاندي نبوی مسجد ته ننوت، ځکه مينه يې تر ټولو له رسول الله (صلی الله عليه وسلم) سره زياته وه. خو په حيرانوونکي ډول يې وليدل چې د لمونځ کوونکو شمېر کم او ډېری زاړه او ناروغ دي. له يوه يې وپوښتل: دخدای پيغمبرصلی الله

عليه وسلم چېرته دی؟ ځواب يې ورکړ: ان حضرت صلی الله عليه وسلم خيبر تـه تللی دی، چي فـتح يـې کړي.ابوهريره (رضی الله عنه) د دې خبري له اوريدلو غمگين شو، ځکه د رسـول الله (صـلی الله عليـه وسـلم) سـره يـې ليـدل پـه برخـه نشـول کـوم چي ډېر وخت يـې ورتـه اميدونـه درلـودل. نـور مهاجرين هم مسجد ته داخل او هلته کښېناستل، ابوهريره (رضـی الله عنـه) هغـوی تـه د پيغمبرصـلی الله عليـه وسلم د حضـور د نشـتوالي خبر ورکړ. د غـم او پرېښـانۍ وريـبڅـي يې مخونه وپوښل، ځکه هغوی پـه زړونـو کـي ډېري هيلې درلودې، غوښتل يې له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم سره ووينې، له ملکوتې څېرې څخه يې برکت تر لاسه کړي او له هغه سره په همدې ورځ بيعت وکړي.

لمونځ پيل شو، د مسلمانانو نه يو کس مخکي شو چي امامت وکړي. ابـوهريره (رضـی الله عنـه) لـه څنگلـوري نـه وپوښـتل دا سـړی څـوک دی؟ ورتـه ويـې ويـل : دا شـخص سباع بن عرفطه غفاري دی. پيغمبر عليه سلام، دا کس تـر څو چي هغه مبارک په مدينـه کي نـه وي خپـل ځـای ناسـتی غـوره کـړی، چـي د مسـلمانانو امامـت وکـړي. امـام تکبيـر ووايـه، لمـونځ کوونکـو هـم ورپـوري تکبيـر ووايـه او پـه لمانځه ودرېدل.

د سورت فاتحې له لوستلو وروسته امام د سورة مريم ځو اياتونه تلاوت کړل. ابوهريره (رضی الله عنه) دلمړي ځل لپاره دا ايات اورېده ،په ډير غور يې ورته غوږ نيولی و.
په دوهم رکعت کي امام له فاتحې وروسته د سورة المطففين ځو اياتونه ولوستل. چي داسي شروع کيږي:
﴿ وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِينَ 1 الَّذِينَ إِذَا اكْتَالُواْ عَلَى النَّاسِ يَسْتَوْفُونَ 2 وَإِذَا كَالُوهُمْ أَو وَّزَنُوهُمْ يُخْسِرُونَ 3 أَلاَ يَظُنُّ أُولَئِكَ أَنَّهُم مَّبْعُوثُونَ 4 لِيَوْمٍ عَظِيمٍ 5 يَوْمَ يَقُومُ النَّاسُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴾

(خرابي ده کموونکو لره ، هغه خلک چي کله په پېمانه اخلي نو پوره ډکوي،او کله چي يې په پېمانه ورکوي هغوی ته يا په تول يې ورکوي نو کمی پکښي کوي،ايا خيال نه لري هغه خلک چي دوی لره پورته کېدل دي، ددې لويي ورځي لپاره، په کومه ورځ چي به ودرېږي خلک لار کتونکي دجهان د مالک)

امام سورت تر پايه ولوست. ولي ابوهريره (رضی الله عنه) وايي زه همدارنګه د سورت په لومړۍ برخه کي پاته وم او هغه اياتونه مي تکرارول.

له ځان سره مي وويل: اې دپلاني زويه ، هلاکت دي وي درباندي. زما مطلب د دوس دقبيلې يو کس وو چي د تللو لپاره يې دوه پيمانې درلودې، هغه چي درنه وه د ځان لپاره

به یې کارولـه او هغـه چې سپکه وه دنـورو دخطا ایسـتلو لپاره به یې استعمالوله. ابوهریره رضی الله عنه د اورېدلو ایـاتونو پـه معنـی پوهېـده نوځکـه یـې پـه هغـوی زړه وسوځېداو ده ته یې یو ښکلی اغېز وړاندي کړ.

لمـونځ پـای تـه ورسـید ، ابـوهریره اوطفیـل رضـی الله عـنهم، سباع بـن عرفـه تـه لاړل. لـه سلام اچولـو او روغبړ وروسته یې هغه دخپل راتګ په موخه خبر کړ. عرفه هغوی ته ښه راغلاست ووایـه او دهغـوی کـار(مدینې تـه هجرت) یې وستایه. بیا د قبیلې نورو خلکو ته ورغلل او یو لـه بـل سره یې مشوره وکړه چې ایا دلته پاته شي او کـه پـه رسـول الله (صلی الله علیه وسلم) پوري خیبرته لاړ شي.

هر یـوه نظـر در لـود. ابـوهریره (رضـی الله عنـه) پـه داسـي ډول په لوړ اواز سره خپل نظر ووایه چې ټول یې واوري او ویې وویل : هر ځای چې دالله رسول صلی الله علیه وسلم وی زه به هلته لاړ شم.

دې خبـري د ابـوهریره (رضـی الله عنـه) ملګـري سـفر تـه تشویق کړل او پرېکـړه وشوه چې سبا سهار بـه د حضـرت محمد صلی الله علیه وسلم په لور حرکت کوي.

ابـوهریره (رضـی الله عنـه) خپلـه مـور پـه مدینـه کـي پرېښوده، دهغې ورځې په سبا یې له دوسي مهاجرینو سره دخیبر په لور حرکت وکړ او هغه غلام چې یې د ځان او مور

دخدمت لپاره اخستی وو لـه ځان سره ملګری کړ. لمر راوخوت او هرځای روښانه شو. هوا ګرمه وه او ورو ورو نوره هم ګرمېده . مهاجرينو د ګرمي تېزوالی احساساوو خو زغمله يې او کومه پاملرنه يې نه ورته کوله، ځکه هغوی د داسي مهم کار هوډ درلود چي دهغه دلاسته راوړلو لپاره يې د ټولو سختيو زغمل اسانه کول.

ماپښين مهال يې د ډېري ستړيا احساس وکړ، يوځای له خپلو اوښانو کښته شول. د ماپښين له لمانځه وروسته د قيلولې په خوب ويده شول. له لېږ دمي وروسته بيا روان شول او د شپې تر يوې برخي پوري يې لا لار لنډوله . پاتي شپه ديوه کوچني غره په ډډه کي ويده شول. سهار مهال ابوهريره (رضی الله عنه) له خوبه راپاڅېد. د لمانځه لپاره يې اذان وکړ او ملګري يې راويښ کړل. ټولو لمونځ وکړاو روان شول. په لاره کې يې چېرته دمه او استراحت ونکړ، ځکه نو ډېر ستړي ول. ماپښين مهال يې لږ دمه وکړه او تر قيلولې وروسته يې سفر ته ادامه ورکړه. هيله يې درلوده چي سبا به خيبر ته ورسېږي او خپله پخوانۍ هيله به تر لاسه کړي.

دهغوی له سفره پنځلس ورځي تېرېدې، يوازي يوه ورځ په مدينه کې پاتي شول، نور چېرته نه وو درېدلي. نوځکه يې ستومانتيا خپل وروستي پړاو ته رسېدلې او

نـژدې وو چـي لـه پښـو يـې وغورځـوي، کـه يـې د سـفر د سـتړياوو تـر شـا ارزښـتمنې هيلـې نـه درلـوداى نـو نـه يـې شواى کولاى چي دا ستړياوې او مشکلات وزغمي.

له ستړياوو سره سره ابوهريره (رضی الله عنه) وليدل چي غلام يې د هغوى په ډله کي نشـته. شاوخوايې وکتـل چي ويـې مـومي خـو درک يـې نـه وو. لـه ملګـرو يـې وپوښـتل، ويې ويل : موږ نه دی ليدلی.

ابوهريره (رضی الله عنه) باور وکړ چي يا له کاروان څخه جدا او ورک شوی دی او يا داچې تېښته يې کړې ده.

له کاروانه بېل شو او دهغه په پلټنلو يې شروع وکړه، تر ډېري ستړيا وروسته نه يوازي هغه يې پيدا نه کړ بلکي ستړی او ستومانه بېرته کاروان ته راوګرځېد. د لاري په اوږدو او دهسکو غرونو په مېنځ کې يې دا شعر زمزمه کاوو:

يا ليلة من طولها وعـــــــنائها × على انها من دلده الكفر نجت

(څومره اوږدې او سختې شپې، ددې په بدل چي د کفر له ښار نه وژغورل شو.)

اخر کاروان ته ورسېد او هغوی يې له خپل مشکل څخه خبر کړل، ملګرو يې زړه سوی او همدردي ورسره وښوده. ابوهريره (رضی الله عنه) يې په ځواب کي وويل : هيڅ خبره

نه ده كه مي غلام ورك شي ، يا دنيا له لاسه وركړم خو چي درسول الله (صلى الله عليه وسلم) ليدنه مي په برخه شي.

دې جملې د هغوى ستړيا وركه، د سفر مشكلات يې هير او له هغوى سره يې د زغم او حوصلې په سربښاره ځواك كي مرسته وكړه.

مهاجرين د دريمې ورځي د سهار دلمانځه تر ادا كولو وروسته بيا روان شول.

ورو ورو لمر راښكاره شو او روښنايي يې هرځاى ونيو. خيبر له لوړو كلاوو سره له ليري ښكاره شو. د هغه په ليدلو زړونه ولړزېدل او مينې په سينو كي په ځلا شوې. يوځل بيا يوه كس د ترانې په ويلو شروع وكړه. اوښانو تګ ګړندى او سپاره يې موخې ته نور هم نژدې كړل. له څو شېبو وروسته هغوى د مسلمانانو پوځ ځاى ته ورسېدل، رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د خپل ځارندوى په مرسته د هغوى له راتګ څخه خبر شو. هغه مهال رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د فرمان وركولو په حال كي وو او مسلمانانو د خيبر د وروستۍ كلا د فتح كولو لپاره نقشه كښله. ابوهريره (رضى الله عنه) په داسي حال كي چي دخوشحالي اوښكي يې په مخ روانې وې له ټولو وړاندي هغه مبارك ته نژدې شو او ويې ويل: السلام عليك يا رسول الله (صلى الله عليه وسلم) او لاس يې وراوږد كړ.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د سلام ځواب ورکړاو ویې فرمایل: ته څوک یې ؟

ابوهریره (رضی الله عنه) ځواب ورکړ: زه عبدالشمس بن صخر دوسی، مشهور په ابوهریره یم .

رسول الله صلی الله علیه وسلم په موسکاوویل : هو ته ابوهریره، عبدالرحمن بن صخر دوسی یې.

ابوهريره (رضی الله عنه) وخندل او ویې ویل : هو زه عبدالرحمن بن صخر دوسی یم. بیا یې وویل : اې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) زه له خپل قوم سره راغلی یم څو له تا سره په اسلام بیعت وکړم، له تاسره واوسم او ستا له ملګرتیا نه نېکبخت شم .

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) بیعت ورسره وکړ، ښه راغلاست یې ورته ووایه او دعا یې ورته وکړه.

بیا طفیل رضی الله عنه راغی، پیغمبر علیه سلام ته یې سلام ور واچاوو، په غېږ کې یې ونیواو په تندی مبارک یې مچ کړ.

بیا نور مهاجرین راغلل هغه مبارک صلی الله علیه وسلم ته یې سلام اچاوو او په اسلام یې ورسره بیعت کاوو.

طفيل رضی الله عنه دهغه مبارک صلی الله علیه وسلم تـر څنـګ ولاړ وو ، د هـر يـوه نـوم يـې اخيسـت او ورتـه ورپېژاند يې.

پيغمبـر عليـه سـلام دهغـوی لـه راتـګ څخـه خوشـحال شو او هغوی هم د رسول الله (صلی الله علیه وسلم)په ليدلو زښت زيات خوشحال شول. ځکه د ژونـد پـه اوږدو کـي يـې لويه نيکبختي لاس ته راوړې وه او د رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ليـدل يـې د سترګو رانجـې شوي وو. لـه ډېري خوشـحالي يـې ژړل. پـه ځـانګړي ډول هغـه وخت چي ويـې ليدل د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم اغېز او ښکلا تر هغه څو ځله ډېره ده کوم چي دوی يې تصور کاوو.

ابـوهريره (رضـی الله عنـه) لـه ټولـو خـوښ وو ، د هغـه مبارک صلی الله علیه وسلم ترڅنګ کښېناست او پـه وار وار به يې له حترام نه په ډکه مينه هغه ته کتل. دا مهال چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مهـاجرينو تـه د اسلام مسـائل بيـانول، ناڅاپـه دابـوهريره (رضـی الله عنـه) غـلام د هغه په وړاندي ښکاره شو.

ابـوهريره (رضـی الله عنـه) وايـې : د هغـه پـه ليـدلو مـي تعجب وکړ او حيران شوم، ځکـه بـاور مـي درلـود چي هغـه تښتېدلی دی، په دې فکر کي وم چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم زما پـه لور وکتل او ويـې ويـل: اې ابـوهريره

دا کس ستا غلام دی؟ ومي ويل: هو، دخدای رسوله (صلی الله عليه وسلم) ددې جملې له اورېدلو ډېر حيران شوم او له ځان سره مي وويل: چا هغه مبارک ته وويل چي دا د ابوهريره (رضی الله عنه) غلام دی او هغه ورک شوی وو؟ نو ځکه مي شاهدي ورکړه او ومي ويل: زه شاهدی ورکوم چي له الله جل جلاله پرته بل معبود نشته او ته په حقه سره د هغه استازی يې او ته شاهد اوسه چي ما دا غلام د خدای درضا لپاره ازاد کړ.

رسول الله (صلی الله عليه وسلم) د ابوهريره (رضی الله عنه) له دې ځواب نه خوښ شو او پوه شو چي پوه او ځيرک ځوان دی.

رسول الله (صلی الله عليه وسلم) صلی الله عليه وسلم له طفيل رضی الله عنه نه دهغه د قوم په اړه وپوښتل. طفيل وويل: خدای تعالی ستا دعا قبوله کړه او زما قوم يې هدايت کړ. تر اوسه له اتيا زياتو کورنيو ايمان راوړی، خو ارمان ډېری يې لا په شرک کي پاته دي او د اسلام له منلو يې مخ واړاوو. له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نه يې وغوښتل چي هغوی ته ښېرا وکړي، پيغمبر عليه سلام لاسونه پورته کړل.

ددې حالت له ليدلو څخه د ابوهريره (رضی الله عنه) زړه ټکان وخوړ او له ځان سره يې وويل: د دوس قبيله هلاکه

شوه او ګمان یې وکړ چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم) به د طفیل په غوښتنه هغوی ته چې تر اوسه په خپل فسق، فجور او شرک پاتې دي، ښېرا وکړي. خو په حیرانوونکې ډول یې ولیدل چې رسول الله (صلی الله علیه وسلم)یوځل بیا دطفیل، ابوهریره (رضی الله عنه) او نورو دوسیانو په اړه په خورامهرباني د خیر دعا وکړه او ویې ویل: "یا الهی! د دوس قبیله هدایت کړه او داسلام منلو ته یې راوله."

ابوهریره (رضی الله عنه) او نور دوسیان د هغه مبارک له دې دعا څخه خوښ شول او باور یې وکړ چې ژر به دهغوی د قبیلې نور وګړي هم ایمان راوړي، مسلمان به شي او د ایمان ځلېدونکې رڼا به د هغوی په زړونو کې وځلېږي.

ابوهریره (رضی الله عنه) د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په لیدلو هغه وخت مشرف شو چې د خیبر د اوو کلاوو د فتح کولو څخه یوازې یوه پاتې وه، نو ځکه هغه یوازې د همدې یوې په فتح کولو کې له مسلمانانو سره ګډون درلود. دجګړې په اوږدو کې د رسول الله (صلی الله علیه وسلم)یوې خبرې د ابوهریره (رضی الله عنه) پام را اړاولی وو.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د مسلمانانو د یوه مبارز په اړه چې د مسلمانانو په لیکو کې د کفارو په وړاندې جنګېده، ویلي وو: هغه د جهنم اهل دی.

ابوهریره (رضی الله عنه) ددې خبري لـه اورېدلو حیـران وو، ځکه لید یې چې هغه سړی د جنګ په ډګر کي لـه ځانـه ډېره مېړانه ښیي، ډېر او ژور ټپي شوی دی. ځیني خلـک د پیغمبرعلیه سلام د خبري په اړوند د هغه پـه اړه غږېدل او د هغه له کار څخه په شک کي وو. ابوهریره (رضی الله عنه) هغوی ته وویل: خدای او رسول یې تر موږ، زموږ په حال ښه پوهېږي، په دې خبرو کي وو چې هغـه سړی پـه ځمکـه ولوېـد، څرنګـه چـي یـې د تـورو د زخمونـو د درد زغـم نـه درلود نو یې نېزه را وایسته او ځان یې پـه ننښـه کـړ. خلـک ددې صحنې لیدونکي وو.

یو کس د حضرت محمد صلی الله علیـه وسلم پـه لـور منډه کړه او هغه یې ددې کس په حال خبر کړ او ویـې ویـل: فلانـي ځانوژنـه وکـړه. پیغمبـر علیـه سـلام د دې خبـرې پـه اورېـدلو سـره بـلال تـه دسـتور ور کـړ چـي پورتـه شـه او د خلکو په مېنځ کي ووایه چي له مؤمن پرته څوک جنت ته نه داخلیـږي، خـو خـدای خپـل دیـن تـه د فاسـق پـه وسـیله هـم کامیابي ورکوي. ټولو د پیغمبر علیه سلام خبره واورېده. ابوهریره (رضی الله عنه) چي هم دا خبره اورېدلې وه پـه لـوړ غږ یې وویل: د خدای رسول ریښتیا وایي، دخدای رسـول ریښتیا وایي.

د خيبر د وروستۍ کلا تر فتحې وروسته د حبشې مهاجرين چې کلونه وړاندې مهاجر شوي وو، راغلل او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په حضور مشرف شول. رسول الله (صلی الله علیه وسلم) د هغوی له راتګ څخه زيات خوشحاله شو، ولاړ شو او جعفر بن ابی طالب يې په غېږ کې ونيو، تندی يې ورښکل کړ او ويې ويل: نه پوهېږم د خيبر له فتحې خوشحاله شم که د جعفر له راتګ نه.

ددې ملاقات خاطره د همېش لپاره د ابوهريره (رضی الله عنه) په ذهن کې پاته شوه، له هغې ورځې او مدينې ته له راتګ وروسته جعفر ډېر ورباندې ګران وو او د ژوند تر وروستۍ شېبې پورې يې دا مينه همداسې په زړه کې ورسره پاته وه.

د خيبر جګړه پای ته ورسېده او ټولې کلاوې يې فتح شوې. الله تعالی يهود خوار او ذليل کړل، مسلمانانو ډېر غنيمتونه لاس ته راوړل، د غنيمتونو يوه برخه ابوهريره (رضی الله عنه) او دوسی ملګرو ته يې ورسېده او له هغه وروسته د اسلام له نورو لښکرو سره مدينې ته وګرځېدل. مهمه پېښه چې يې په خيبر کې ليدلې وه او همېشه يې د هغه ذهن مشغولاوو، په زهرو د ککړ شوي پسه کيسه وه چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم لپاره راوړل شو.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یوه برخه ترې وخوړه خو کله چې اصحابو وغوښتل چې ویې خوري، هغه مبارک صلی الله علیه وسلم وفرمایل: لاس پورته کړئ دا پسه په زهرو ککړ شوی دی.

همدارنګه د حضر ت محمد صلی الله علیه وسلم خبري، هغې یهودې ښځې ته چې دا مسموم پسه یې راوړی وو، د ابوهریره (رضی الله عنه) د حیرانتیا سبب شوې وې او هر وخت به یې دا جمله چې پیغمبر علیه سلام یهودی ښځې ته کړې وه چې هیڅکله به تا خدای په ماسلطه نه کړي. ددې صحنې لیدلو هم د ابوهریره (رضی الله عنه) تصدیق او محبت د حضور صلی الله علیه وسلم په وړاندې زیاتاوو.

د مدینې په لار به ابوهریره (رضی الله عنه) له نورو ورونو څخه د خیبر دفتحې په اړه پوښتنه کوله چې دی به ورڅخه خبر نه وو او هغوی به د پېښو څرنګوالی ورته وایه .د خیبر په فتح کې یې دحضرت علی رضی الله عنه له مېړانو خوند اخیست.

وایي کله چې مسلمانانو ته دخیبر دیوې کلا نیول سخت شول، پیغمبر علیه سلام، حضرت علی رضی الله عنه راوغوښت ترڅو د خیبر د همدې کلا د فتحه کولو لپاره د یوې ډلې مشري ورکړي. حضرت محمد صلی الله علیه

وسلم ته وویل شول چي د حضرت علی صاحب سترګي درد کوي. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل : ماته یې راولئ.

حضرت علی رضی الله عنه راغی او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د خپلې مبارکي خولې لاړي دهغه په سترګو تېري کړې او هغه سمدستي جوړ شو.

بیا یې د اسلام بیرغ په لاس کي واخیست، د زمري په څېر یې په دښمن حمله وکړه او هغه یې له پښو واچاوو. خدای تعالی توفیق ورکړ چي خیبر فتح کړي او دا لویه کامیابي د مسلمانانو په برخه کړي، همدارنګه په یوه بله پېښه کي چي یوه یهودي قومندان د مسلمانانو په وړاندي بیرغ پورته کړی وو، هغوی یې مبارزې ته بلل او شعر یې وایه، په خپل ځان نازېده او صحابه دهغه له لاسه ډېر ځوربدلي وو د حضرت علی رضی الله عنه په لاس له پښو واچول شو.

ابوهریره (رضی الله عنه) دحضرت علی رضی الله عنه په لاس ددې یهودي په وژلو نازېده او ویاړل یې.

ددې ټولو پېښو اورېدلو د ابوهریره (رضی الله عنه) تنده نه ماتوله، همدارنګه یې له خپلو نورو همځنګو د نورو پېښو پوښتنه کوله، ددې لېوال وو چي د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم تر څنګ وي، دهغه مبارکي څېرې ته

لـه کتلـو برکـت تـر لاسـه او دهغـه ملکـوتي خبـرو تـه چي د ابـوهريره (رضـی الله عنـه) پـه زړه او غـوږ ونـو کـي يـې ځـای نيو ، غوږ ونيسي.

مدينې ته له رسـېدلو وروسـته ابـوهريره (رضـی الله عنـه) له ډېرو نورو اصحابو سره په هغـه اوليمـه کـي چي پيغمبر عليه سلام د صفيې بنت حيی سره چي د خيبر پـه ورځ نيـول شـوې وه، د نکـاح پـه مناسبت جوړه کـړې وه ګـډون وکـړ. صفيې بي بي د قريشـو پـه وړاندي زيـات احتـرام درلـوداو شريفه ميرمن وه ، نوځکه رسول الله (صلی الله عليـه وسـلم) دهغــې دتســکين او اکــرام لپــاره ورســره نکــاح وکــړه. دا مجلس خورا ساده وو چي يوازي ډوډی ، خورما او غـوړي يې درلودل.

کلـه چي داسـلام لښـکر لـه خيبـر څخـه راګرځـېده، درې پېښې وشوې، چي دا درې واړه دابـوهريره (رضـی الله عنـه) ذهن ساتلې او هيڅ کله يې نه هېرولې،يوه داچي کله هغوی په وادی القری کي وغوښـتل اسـتراحت وکـړي ، يـو غـلام چي مدعم نومېده او د بنی خباب د يوه کس له خوا پيغمبر عليه سلام ته هديه ورکړل شوی وواو د هغـه مبـارک صـلی الله عليه وسلم د اوښ د سـامان د کښـته کولـو پـه حـال کـي وو ، ناڅاپـه يـو غشـی چي معلومـه نـه وه چاوويشـت او لـه کوم لـوري راغـی پـه هغـه ولګېد او را وايې چاوو. خلکو

وويل : شهادت دي يې مبارک وي ، شهادت دي يې مبارک وي.

خو حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وويل: هغه شهيد نه دی. په خدای قسم چي زما روح يې په بلاکيفه لاس کي ده، هغه ځادر چي يې د خيبر تر غنيمتونو مخکي وړی وو، ورته د اور لمبې دي .

دې خبري په خلکو دومره اغېز وکړ چي سمدستي يو کس لاړ دبوټ بند يې راووړ او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم حضور ته ورغی او ويې ويل:

دامي د غنيمتونو تر تقسيم وړاندي اخستی دی . ان حضرت صلی الله علیه وسلم وويل: دا تسمه د دوژخ له اوره ده.

د سفر په اوږدو کي مسلمانان يوې درې ته ورسېدل او په لوړ غږ يې د الله اکبر او لا اله الا الله په ويلو شروع وکړه.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) هغوی ته وکتل او ويې ويل: ځانونه کنترول کړئ، تاسو هغه خدای يادوئ چي اورېدونکی، نژدې او هغه هر ځای له تاسو سره دی.

ابوهريره (رضی الله عنه) له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) شاته او ابوموسی اشعری يې په څنګ روان وو، هغه مبارک صلی الله علیه وسلم ابوموسی ته وکتل او ويې

ویل: ای عبدالله بن قیس! ابوموسی وویل: لبیک یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم). پیغمبر صلی الله علیه وسلم وویل: خوښوې چې د یوې جملې په ویلو درته د جنت له خزانو یوه خزانه وښیم؟

ابوموسی وویل : ولی نه یا رسول الله (صلی الله علیه وسلم) زما مور او پلار دې تر تا ځار وي.

پیغمبر علیه سلام وویل : هغه جمله لا حول ولاقوة الا بالله ده.

ابوهریره (رضی الله عنه) هغه جمله په هماغه ورځ یاده کړه او له هغه وروسته یې د نورو اذکارو سره یوځای تکراروله، څرنګه چې یې ددې ذکر فضیلت له رسول الله (صلی الله علیه وسلم) څخه اورېدلی وو، څو چې ژوندی وو دا ذکر یې کاوو.

ابوهريره مدينی ته ورسيد او د نبوي مسجد په صفه کي يې ځيري چي به بې کوره صحابه کښېناستل او ويده کېدل، ځای ونيو او له پيغمبر عليه سلام سره يې ديوځای اوسېدلو دوره چي د هغه دژوند ترټولو ښکلې مرحله وه، شروع شوه. هغه مهال اووم هجری کال وو چي د ابوهريره عمر تر ديرش کلنۍ لوړ نه وو. ځيرک ځوان، دقوي حافظې درلودونکی او دعلم او پوهي تږی وو.

غوره يې ګڼله چي د پيغمبر عليه سلام له خبرو څخه برخمن شي او دخپل ژوند لپاره معنوی زېرمه جوړه کړي. هيڅ څېز نه وو چي دهغه په ژوند کي ددې کار مانع شي. هغه قانع او داسي ځوان وو چي تر اوسه يې واده نه وو کړی. په ډېرو کمو امکاناتو يې ژوند کاوو. خپل نفس يې داسي روزلی وو چي لوږه، لوڅه او خواري يې زغملای شوای او په پوره ډول پيغمبر عليه سلام ته متوجه وو. هغه يوازي يو هدف درلود هغه هم علم او په دين کي پوهه. ددې هدف د پوره کولو لپاره لومړني څلور کلونه يوه شېبه هم د حضور صلی الله عليه وسلم څخه بې پروا نه شو او د علم د لاس ته راوړلو لپاره يې ډېري سختۍ وزغملې. په صبر او حوصله سره يې وکولای شول چي د پيغمبر عليه سلام د مکتب د غوره شاګردانو څخه يو شي.

په مدینه کي یې د اوسېدلو زیات وخت نه وو تیر شوی، چي حبیب بن عمرو حممۂ الدوسی د دوس د قبیلې مشر له خپلو اویا قومیانو سره مدینې ته راغی او د حضور صلی الله علیه وسلم سره تر لیدلو وروسته په ایمان مشرف، د خپلي قبیلې له پخوانیو مسلمانانو سره یوځای او د مدینې په یوه ګوښه کي یې واړول.

ابو هریره د هغوی له راتګ څخه ډېر خوښ شو او باور یې درلود چي د هغوی د ایمان راوړلو لامل د پیغمبر علیه سلام د خیبر د ورځي دعا ده.

ابو هریره په زړه او غوږنو د رسول الله صلی الله علیه وسلم خبري اورېدې، په څه چي به نه پوهېده پوښتنه به یې تری کوله او په خپله حافظه کي به یې ساتلې. لومړی څیز چي یې په خورا پاملرني زده کړ د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د لمونځ کولو طریقه وه.

په دې اساس یې لمونځ اصلاح او په پوره پاملرنه یې د هغه مبارک صلی الله علیه وسلم په څېر ادا کاوو. له دې سره یې په حیرانوونکی ډول د قران کریم په یادولو شروع وکړه، د قرانکریم ایاتونه او سورتونه یې له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه زده کول او د هغه مبارک په توصیه به یې یادول. همدارنګه له اصحابو به یې غوښتل څو هغه ته قران کریم ورزده کړي او د هغه د ښه یادولو لپاره ورته دعا وکړي. ابو هریره رضی الله عنه په لږ وخت کي د رسول اکرم صلی الله

عليه وسلم له ډېرو اصحابو سره وپېژندل، د هغوی نوم، ځای او هغه تکليفونه چې دوی د اسلام په لار کې تېر کړي وو، ابوهريره پېژندل. کله کله به انس بن مالک ته چې پوه او هوښيار ځوان او د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم لومړنی خدمتګار وو، ورته او له هغه څخه به يې د هغو پېښو او خبرونو چې په حضرت محمد صلی الله عليه وسلم باندي د هجرت په شروع کې تېري شوې وې، پوښتنه کوله او هغه به ورته دا حالات بيانول، ابوهريره رضی الله عنه به په خورا خوشحالي ورته غوږ نيوه.

همدارنګه ابوهريره رضی الله عنه ليدل چې عبدالله بن مسعود او موريې د پيغمبر اکرم صلی الله عليه وسلم کور ته ډېر تګ راتګ کوي، فکريې وکړ چې هغوی دواړه د هغه مبارک خدمتګاران دي، خو وروسته پوه شو چې داسې نه ده.

ابوهريره هيله درلوده چې ابن مسعود، انس بن مالک او نور نژدې صحابه چې کوم ځای د پيغمبر صلی الله په وړاندي لري دي يې هم ولري. ابوهريره ته رسول اکرم صلی الله تر ټولو خلکو ګران وو، حتی تر خپل ځان هم او هر وخت چې به له هغه سره وو د نېکبختي او کله چې په تړې جدا شو د وېري احساس به يې کاوو او په ښکاره ډول يې دا مطلب حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته ورساوو او ويې ويل: ای دالله رسول صلی الله عليه وسلم ! کله چې دي وينم خوشحاله کېږم او ستا ليدل مې د سترګو د سړېدو سبب ګرځي. رسول الله

صلی الله علیه وسلم هم چې د هغه په رېښتیولي پوه وو مینه یې ورسره کوله، هر وخت به له هغه سره په ورین تندي مخامخ کېده. ابوهریره رضی الله عنه یوازې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مینه نه، بلکې له ټول اهل بیت او نورو اصحابو سره یې هم مینه درلوده ځکه چې هغوی په رسول الله صلی الله علیه وسلم ګران ول، حتی واړه ماشومان چې رسول الله به ورسره مینه کوله په ده ګران وو او مینه به یې ورسره کوله، په ځانګړې ډول حسن او حسین د علی رضی الله تعالی عنه زامن، عبد الله بن عباس او نور ماشومان.

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مینه له ابوهریره رضی الله عنه سره ددې سبب شوه چې هغه خپل ځان نېکمرغه وشمېري، ځکه د ژوند وروستۍ ارزو یعنی د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره لیدلو او د علم او پوهې زده کول د هغه مبارک صلی الله علیه وسلم څخه.

یوازې یوه څېز هغه ډېر ځوراوو او د هغه داخلي پاکي یې ځیږوله هغه هم دا چې مور یې لا تر اوسه په شرک کې پاتې وه او په خدای او د هغه په رسول یې له ایمان راوړلو څخه منع کوله، ابوهریره به هغه هر وخت اسلام ته دعوت کوله خو هغې به نه مانه.

د خیبر له فتحې تر راګرځېدو وروسته چې ابوهریره هر څه اورېدلي یا لیدلي وو کوم چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د رسالت په رېښتینولی او صداقت یې دلالت کاوو،

خپلي مور ته يې وويل. په ځانګړي ډول د زهرجن پسه کيسه چي حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته راوړل شو. خو مور يې همداسي د پلار او نيکونو په دين ولاړه وه او له مسلمان کيدلو يې منع کوله او ويل يې: څو چي ژوندۍ يم، ذی الخلصه لمانځم.

له دې سره سره ابوهريره رضی الله عنه دخدای جل جلاله په لور د هغې له دعوت کولو څخه لاس په سر او مايوس نه شو او هره ورځ به يې هغې ته قسم ورکاوو چي په خدای او رسول صلی الله عليه وسلم يې ايمان راوړي. هغې نه يوازي ايمان را نه ووړ بلکي يوه ورځ په قهر شوه او د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم سپکاوی يې وکړ.

ابوهريره رضی الله عنه ددې خبرې په اورېدلو خورا وځوربد او وډاربد چي هسي نه ددې ګستاخي له امله دهغه د مور او حتی دده لپاره چي ددې بې احترامي سبب شوی دی عذاب نازل شي. له دې امله لوی غم او پرېښاني په غېږ کي واخيست او ددې مشکل دلري کولو لپاره يې له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پرته بل همکار نه ليد، په تېزي سره د هغه مبارک په لور روان شو، مسجد ته له ننوتلو وروسته چي اوښکو يې مخ او ګيره لمده کړې وه، په هغه يې سلام واچاوو او ورسره کېناست.

پيغمبر عليه سلام وويل: څه پېښه شوې ده؟

ابوهريره په غمگين اواز وويل: نن مي مور اسلام ته را دعوت کړه، ويې نه مانه او د هغه په سر يې ستاسو په اړه بدي خبري وکړې، دعا وکړه چي خدای مي مور هدايت کړي.

مهربانه پيغمبر صلی الله عليه وسلم د هغه غوښتنه ومنله، لاسونه يې داسمان په لور پورته کړل او ويې ويل: خدايه! دابوهريره مور ته هدايت وکړې.

ابوهريره رضی الله عنه له دې نه ډېر خوښ شو، چي پيغمبر عليه سلام يې مور ته دهدايت دعا وکړه. له پيغمبر اکرم صلی الله عليه وسلم څخه يې اجازه وغوښته تر څو يې مور ته لاړ شي او د هغه صلی الله له ددې دعا زېری ورکړي، خو مخکي له دې نه چي هغه کور ته ورسېږي الله تعالی يې کار وکړ، د خپل پيغمبر دعا يې قبوله کړه او ابوهريره يې د مور دهدايت لپاره د مهرباني وړ وگرځاوو، ځکه کله چي ابوهريره له کور څخه په ډېره پرېشاني سره ووت، مور يې د هغه څه په فکر کي شوه چي زوی يې ورته دعوت کوله، الله تعالی يې هغه مهال زړه روښانه او د حق په لور يې هدايت کړه، ژبه يې خلاصه شوه او شاهدي يې وويله:

(اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمد رسول الله)

له دې امله يې کفر په ايمان، سخت زړيتوب په نرمي او دښمني يې په دوستي بدله شوه. په تېزي لاړه چي غسل او د جاهليت له چټليو سره مخه ښه وکړي او ايمان چي ښکاره او پټ يې پاک دي په غېږ کي ونيسي.

کله چې ابوهریره کور ته ورسېد د اوبو د تویېدلو له اواز څخه پوه شو چې موریې غسل کوي، ودرید چې موریې کار پای ته ورسوي. موریې کالي واغوستل او مخکې تر دې چې تیکری په سر کړي په اوبو کې یې غوټه کړ او شاهدي یې وویله.

ابوهریره د دې صحنې له لیدلو حیران شو، په تېزي له خپله ځایه وخوځېد او بې له دې چې ودرېږي او له موره پوښتنه وکړي چې څه وشول چې مسلمانه شوه؟ د حضرت محمدصلی الله حضور ته وګرځېد تر څو یې د خپلې مور د اسلام له راوړلو څخه خبر کړي. دا ځل په داسې حال کې د هغه مبارک حضور ته حاضر شو چې له ډېري خوشحالي یې ژړل، سلام یې واچاوو او ویې ویل: زېری، د خدای رسوله، خدای تعالی ستاسو دعا قبوله کړه او مور مې یې هدایت کړه. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څېره د دې خبري په اورېدلو سره وځلېده او خوشحاله شو د خدای حمد او شکر یې په ځای کړل.

ابوهریره موقع غنیمت وبلله او ویې ویل: یا رسول الله دعا وکړه چې الله تعالی ما او مور مې د مؤمینو بندګانو محبوب وګرځوي او مؤمن بندګان زموږ محبوب وګرځوي.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وویل: اې خدایه! ستا دا وړوکی بنده او موریې د مؤمنو بندګانو محبوب او مؤمن بندګان د دوی محبوب وګرځوې.

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د دې دعا وروسته ابوهریره خورا خوښ شو، ځکه دا ورځ هغه ته ښکلې او نه هېرېدونکې وه او له خیبر نه راوروسته یې په ژوند کې د وهمه او بهتره ورځ وه. ځکه په دې ورځ یې د مور په مسلمانېدلو سره د زړه لوی غم ورک او لوی نعمت یې ترلاسه کړ او هغه د پیغمبر اکرم صلی الله علیه وسلم دعا وه چې ویل یې: خدایه مؤمنان د ابوهریره او د هغه د مور محبوب او هغوی د دوی محبوب وګرځوې.

له دې نه هېرېدونکې او تاریخي ورځې وروسته ابوهریره رضی الله عنه ډېر وخت ژوند وکړ او ویې لیدل چې څنګه الله تعالی د خپل پیغمبر دعا د ده په حق کې قبوله کړې وه او هر وخت به یې دا خبره یادوله چې: د خدای په مهرباني چې هر مؤمن مې نوم واوري، که څه هم زه یې نه یم لیدلی، ورباندې ګران یم.

د مور له ایمان راوړلو وروسته ابوهریره احساس کړه چې هیڅ غم، پرېښاني او مشکل د هغه په وړاندې وجود نه لري، نو ځکه یې ټول حواس سترګې، غوږونه او زړه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته متوجه کړل، تر څو په پوره ډول اسلام وپېژني او علم زده کړي.

له هغې ورځې را په دې خوا یې خپله توجه دوو شیانو ته واړوله:

۱ – د قران کريم د هغو اياتونو يادول او پرې پوهيدل چي له دې وروسته په حضور صلی الله عليه وسلم نازلېږي.

۲ – د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د احاديثو، وينااوو او نصيحتونو يادول او وربانـدي پوهېدل چي اصحابو ته يې کول، بې له دې چي يوه کلمه هم ترې بېځايه شي. همدارنګه د هغو اياتونو يادول چي تر دې وړاندي په حضرت محمد صلی الله عليه وسلم نازل شوي وو او هغه خبري چي مخکي يې اصحابو ته کړې وې، د هغه مبارک له تېر سيرت او د هغه د ژوند له تاريخي ورځو سره.

د دې دوو موخو لپاره وو چي ابوهريره د ژوند ټولي ورځي او د شپو څه برخي له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم سره تېرولې او هر وخت به ور سره وو، په هغه مبارک پوري يې لمونځ کاوو او قرائت ته يې غوږ نيو، سهار او ماښام له هغه سره وو، له هغه سره يوځای اصحابو ليدلو او د ناروغانو پوښتني ته تو، له هغه سره يې د جنازو د مراسمو په تر سره کولو کي ګډون کاوو. د پيغمبر عليه سلام کارونه به يې کول، چاچي به پيغمبر عليه سلام غوښت، د ه ته به يې غږ ورکاوو او د هغه دستورونه او پيغامونه به يې خلکو ته رسول.

د ابوهريره ذهن د هغه دفتر په څېر وو چي د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم خاطرې، پيښې او ورځني حالات به يې دقيقاً پکي ثبت کول.

لوړ همت، ځانګړې حافظې، دقيق فهم، د علم دلاسته راړلو لپاره لوږه، په نورو کارونو کې نه مشغولوالی، پوره قناعت او د دنيا له دار مدار سره نا لېوالتيا، له ابوهريره سره په دې مهم کار کې مرسته کوله.

ددې ټولو په سرکې، له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم سره د هغه مينه وه چې دهغه عواطف او احساسات يې په جوش راوړل.

ابوهريره رضی الله عنه د پيغمبر عليه سلام په وړاندې لوړ مقام درلود او دهغه دګرانښت وړ ګرځېدلی وو. له علم سره د هغه مينه د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د خوشحالی سبب شوې وه او اصحابو ته به يې ويل چې ده ته قران کريم ورزده کړې او کله چې به يې ابوهريره ونه ليد، پلټنه به يې کوله او ځوک به يې لېږه چې ويې مومي. کله چې به حضرت محمد صلی الله عليه وسلم مسجد ته راتلی نو به ورته ورغی.

يوه ورځ حضرت محمد صلی الله عليه وسلم جومات ته داخل شو، خو ابوهريره يې ونه ليد. شاوخوايې وکتل او له هغو کسانو نه چې په مسجد کې ول وپوښتل: تاسو دوسی ځوان نه دی ليدلی؟ چا ځواب ورنه کړ. حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د دوهم او دريم ځل لپاره وپوښتل: چا دوسي ځوان نه دی ليدلی؟ هغوی وويل: نه. يو کس چې لمونځ يې کاوو، د لمانځه له خلاصېدلو وروسته يې حضرت محمد

صلی الله علیه وسلم ته وویل: ای دخدای رسولصلی الله علیه وسلم هغه ناروغ دی او د مسجد په یوه څنډه کي لویدلی دی.

پیغمبر علیه سلام ددې خبري له اورېدلو پرېشانه شو او هغه ته ورغی، په موسکا یې سلام وروا چاوو او دناروغي پوښتنه یې وکړه. ابوهريره یې دناروغي ډول ورته ووایه. حضرت محمدصلی الله علیه وسلم خپل مبارک لاس د هغه په دردمن ځای کېښود او دهغه دښه والی لپاره یې دعا وکړه. په هغه شېبه ابوهريره پورته او له ناروغي څخه جوړ شو.

څرنګه چي پورته هم یادونه وشوه: ابوهريره په پوره معنی له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره مینه درلوده او هر څه چي له هغه څخه به یې اورېدل، یادول یې او د ډېري میني له امله به یې ډېری د هغه مبارک څېرې ته کتل. له نېکه مرغه د دې کار د کولو جرئت یې درلود، په داسي حال کي چي یو زیات شمیر اصحابو د هغه مبارک د هیبت له امله په دایمي ډول نشوای کولای د هغه څېرې ته وګوري. ابوهريره رضی الله عنه به ویل په دنیا کي مي د رسول الله تر څېرې پرته بل هیڅ شی ښکلی نه دی لیدلی، ګویا لمر یې په څېره کي حرکت کوي. څرنګه چي هغه مبارک ډېر ورباندي ګران وو نو داسي سوالونه به یې ترې کول چي نورو یې جرئت نه درلود.

یوه ورځ ابوهريره پیغمبر علیه سلام ته وویل: اې د الله رسوله! چي تا وینم خوشحاله کیږم او سترګي مي روښانه کیږي، ما له هر څه خبر کړه.

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وویل: هر څه له او بو څخه پیدا شوي دي.

ابوهریره وویل: ماته داسي کار راوښیه چي د هغه په کولو سره جنت ته لاړ شم.

ان حضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایل: خلکو ته سلام اچوه، هغوی ته خواړه ورکړه، په هغوی رحم وکړه او په شپه کي چي خلک ویده وي پورته شه او عبادت وکړه، هغه مهال په سلامتي سره جنت ته داخلېږې.

یوه ورځ چي ډیر صحابه له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره ناست وو، ابوهریره وویل: یا رسول الله د قیامت په ورځ به ستا شفاعت د چا په نصیب کېږي؟

پیغمبر علیه سلام د ابوهریره له سوال څخه خوښ شو، هغه یې وستایه او ویې ویل: فکر مي کاوه چي د دې مطلب په پوښتنه کي تر تا هیڅوک وړ نه دي، ځکه ستا شوق د حدیثونو دزده کړي لپاره خورا زیات دی. بیا یې وویل: زما شفاعت ډېر د هغو کسانو په نصیب دی چي مخلصانه او د زړه له کومي لا اله الا الله وایي.

صحابه کرام رضي الله عنهم هم د ابوهریره له دې سوال څخه خوښ شول او له هغه یې مننه وکړه، تر ټولو زیات د ابی بن کعب دا سوال خوښ شو او د ابوهریره له ستایلو سره یې هغه ته وویل چي هر وخت همداسي سوالونه وکړي، تر څو د هغوی معلومات زیات شي. په حقیقت کي ابوهریره داسي لارښوونو ته

ضرورت نه درلود ، ځکه هغه په دې اندازه علم خوښاوو لکه تږی چې یخې اوبه خوښوي او له ټولو کایناتو یې حضرت پیغمبر علیه سلام زیات خوښاوو ، نو ځکه به یې عادتا هره ورځ له ان حضرت صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه کوله او خپل علم به یې زیاتاوو .

ابوهریره احساس کړې وه ، چې کله ان حضرت صلی الله علیه وسلم په لمانځه ودرېږي له تکبیر اولی وروسته او له سورة فاتحې مخکې یوه شېبه دربږي او بیا په ویلو شروع کوي ، نو ځکه یې پوښتنه ترې وکړه چې اې د خدای رسوله هغه مهال څه وایې ؟

پیغمبر علیه سلام وویل دا دعاوی وایم : " اللهم باعد بینی و بین خطایایی کما باعدت بین المشرق و المغرب اللهم نقنی من خطایی کما ینقی الثوب الابیض من الدنس اللهم اغسلنی من خطایای بالماء و الثلج و البرد . "

" یا الله زما او زما د ګناهونو تر منځ لیري والی راوله، څرنګه دي چې مشرق او مغرب یو له بله سره لیري کړي دي. یا الله ما له ګناهونو پاک کړې، څرنګه چې سپینه ټوټه له خیرو پاکه شي، یا الله په سړو اوبو ما له ګناهونو ومینځه."

څرنګه چې ابوهریره ولیدل چې ان حضرت صلی الله علیه وسلم یې پوښتنو ته په ورین تندی ځوابونه وایي او هغه له دې چې په علم او معرفت پوري روان دی، صحابه هم د هغه له پوښتنو نه خوښېدل، نو ځکه ابوهریره چې په څه شي باندې نه

پوهېده له هغه مبارک صلی الله علیه وسلم نه به یې پوښتنه کوله، مثلا، لمونځ، روژه، زکات، حج، ایمان د دجنت او دوژخ حقیقت، له ملا اعلی، همدارنګه د رسول اکرم صلی الله تر ژوند پوري. دهغه مبارک دعوت په مکه کي او هغه پېښې چي په هغه باندي هملته راغلي وې، مدينې ته له هجرته او د ژوند د ټولو ورځو له پېښو نه يې پوښتنه کوله.

حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به په حوصله او متانت ورته ځواب وایه.

یوه ورځ انحضرت صلی الله علیه وسلم وغوښتل چي ابوهریره وازمايي. په داسي حال کي چي غنیمت یې وېشه ابوهریره ته یې وویل: له ما څخه نه پوښتې چي دا غنیمتونه د چا مال دی؟

ابوهریره یې په ځواب کي وویل: هیله لرم، هغه څه چي تاته خدای درزده کړي دي، ماته هم وښيې.

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وویل: نو څادر دي هوار کړه، ابوهریره دخپلې اوږې څادر د هغه مبارک او ده په مېنځ کي وغوړاوو، پیغمبر علیه سلام ډېر وخت ورته خبري وکړي او بیا یې وویل: څادر دي ټول کړه.

ابوهریره څادر راټول کړ، له هغه وروسته یې سمدستي ددې کار په راز باندي د پوهېدلو لټه وکړه. دهغې ورځي په شپه کي چي څه برخه یې تېره شوې وه ابوهریره هغه حدیثونه چي له انحضرت صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي وو، په

ياد کړل او تکرارول يې، دهغو حديثونو يادول ورته دومره اسانه وو لکه چې د کوم کتاب له مخي چي يې وايي، بې له دې چې يوه کلمه هم ترې بې ځايه شي، ډېر خوشحال شو او د دې نعمت په بدله کي يې د خداى ډېر شکر وکړ.

له دې پېښي څو ورځي نه وې تېري شوې چې الله تعالى په ابوهريره مهرباني وکړه او د پيغمبر عليه سلام هغه دعا چي ويلي يې وو:

"يا الله دابوهريره حافظه قوې کړې" قبوله شوه، له هغې ورځي وروسته چې به يې هر مطلب يا داوو، بيا يې نه هېرېده.

يوه ورځ پيغمبر عليه سلام جومات ته داخل شو، ويې ليدل چې ابوهريره، زيد بن ثابت او يو بل کس ﷺ په جومات کي ناست دي، زيد او هغه بل سړى لمونځ کوي او ابوهريره قران کريم تلاوت کوي. څو شېبې وروسته هغوى دواړو لمونځ خلاص کړ او د دعا لاسونه يې پورته کړل. پيغمبر عليه سلام هغوى ته نژدې شو، تر څو واوري چې له خدايه څه غواړي؟ خو هغوى خپله دعا ودروله.پيغمبر عليه سلام هغوى ته وويل: خپله دعا وکړئ. هغوى دعا کوله پيغمبر عليه سلام آمين وايه، چې دعاوې يې پاى ته ورسېدې پيغمبر عليه سلام ابوهريره ته وويل: ته ځان ته دعا وکړه. ابوهريره لاسونه پورته کړل او داډول دعا يې وکړه: يا خدايه! هغه څه چې دغو دوو ورونو درنه وغوښتل ما ته يې هم راکړه او له تا څخه داسي پوهه غواړم چې هيڅکله مي هېره نشي."

پیغمبرعلیه سلام آمین وو ایه. زید او ملګري یې چې دا مهمه دعا واورېده او په اهمیت یې پوه شول ویې ویل: خدایه موږ هم له تاڅخه داسي علم غواړو چې هیڅکله یې هېر نه کړو.

خو دا ځل پیغمبر علیه سلام آمین ونه وایه او په مهرباني سره یې هغوی ته وویل: (دوسي ځوان په دې دعا کي تر تاسو مخکي شو.) دا جمله یې یو ځل بیا تکرار کړه.

پوه او حکیم ذات غوښتي وو چې دا بې نومه او نښانه چې یوازي چوپان وو، د اسلام مرکز ته راشي او مهم کار چې د ډېری احادیثو یادول او د اسلامی امت په مېنځ کي د هغوی خپرو ای، په ځانګړي ډول تابعینو او له هغوی وروسته د احادیثو نقل له یوه نسل څخه بل نسل ته د هغه په واسطه ورسوي.

ابوهریره رضی الله عنه مخکي له دې چې پیغمبر علیه سلام ورته د حافظې د تقویت دعا وکړي او مخکي د څادر د هوارولو د پېښې څخه، د پیغمبر علیه سلام ځیني خبري ترې هېرېدلې. نو ځکه یې پیغمبر علیه سلام ته شکایت وکړ او ویې ویل: اې د خدای رسول صلی الله علیه وسلم له تاسو مې ډېر احادیث اورېدلي دي ولي ارمان یو شمیر رانه هیر شوي دي.له دې امله پیغمبر علیه سلام ورته دعا وکړه . له هغه وروسته یې حافظه دومره قوي شوه چې د ایات یوه کلمه یا یو حدیث دي ترې هیر شي. له پیغمبر علیه سلام سره د ابوهریره یو ځای والی، د هغه قوي حافظې او له علم سره بې ساري

مینــه د ده د نبــوغ او برتــري سـبب شــوه. لــه دې املــه يــې د حديثونو په يادولو او روايت کې له ټولو اصحابو درجه يوړه.

له دې سره سره دهغـه يوځـای والی لـه حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره هغه د خپلي مورله خدمت او محبت نه بې پروا نه کړ، هره ورځ به دهغې دليدلو لپاره تلی او کومه کمه غذا چې به يې په لاس راوړه هغې ته يې ور وړه. موريې هم په دې کمه غذا قانع وه. ابوهريره چې به هرڅه له پيغمبر عليـه سلام څخـه اورېدل، مـور تـه بـه يـې هم ورښودل،له دې سربېره مـور بـه يـې مسـجد نبـوي کـې لـه نـورو ميرمنـو سـره يوځای لمونځ کاوه او د حضرت محمدصلی الله عليه وسلم نصـيحتونه بـه يــې اورېـدل، يــوه ورځ ابــوهريره دوه دانــې خرماوي خپلي مورته ورکړې او ورته ويې ويل: دا رسول الله صلی الله عليـه وسلم تاتـه را استولې دي، بسـم الله ووايـه او ويــې خــوره، ټولــه ورځ بــه وږې نــه شــې. بيــا يــې وويــل: مورجانې! پـه خدای قسم هغـه يـوازينی څيز چې مالـه کـار، کسب او ستا دخـوراک د برابرولـو څخـه راګـرزوي هغـه لـه رسول الله صلی الله عليه وسلم سره زما وخت تيرول او يوځای والی دی. ځکه غواړم له هغه څخه علم، پوه او دينی معرفت زده کړم. نو مشکلات وزغمـه، ځکـه لـه هري سختي وروسته اساني شته.

يـوه ورځ ابـوهريره رضـی الله عنـه مـورتـه ورغـی او ويـې ويل: موري نـن مې لـوږه او ارزښتمنه تحفـه در تـه راوړې ده.

موريې وويل: هغه څه دي؟ ابوهريره وويل: نن ورځ يو شمېر فقيران حضرت محمد صلی الله عليه وسلم ته راغلل او ويې ويل:

"اې د الله رسول صلی الله عليه وسلم! سرمايه داران زيات اجر او ثواب تر لاسه کوي. له يوه لوري د خدای عبادت کوي او له بل لوري خپل مالونه د خدای په لار کې ورکوي، خو موږ څه نه لرو چې د خدای په لار کې يې صدقه کړو."

پيغمبر عليه سلام وويل: "الله تعالی تاسو ته نور نعمتونه در کړي چې کولای شئ هغه هر وخت صدقه کړئ، سبحان الله ويل صدقه ده، د الحمد لله، لا اله الا الله او الله اکبر ويل صدقه ده، په نيکي امر او له بدو راګرځول هم صدقه ده."

نو مورجانې! دا اذکار ډېر وايه. نو بيا به د غنيانو له ډلې شې او هغه اجر چې الله تعالی يې هغوی ته د بخښښ او نفقې په بدل کې ورکوي، تا ته به يې هم درکړي.

يوه ورځ يې مور ته وويل: پرون ورځ حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم موږ ته يو حديث و وايه او ويې ويل: که ستاسو د کور مخې ته دا وبو يو لښتی وي او تاسې په ورځ کې پينځه واري پکې ولامبئ، ايا ستاسو پر بدن به خيره پاتې شي؟

موږ وويل: نه.

بیا یې وویل: پینځه وخته لمونځونه دهمدې لښتې په څېر دي، الله تعالی د هغوی په مرسته زموږ ټول ګناهونه له مینځه وړي.

نو اې مور جانې! د لمونځونو فضیلت ته پام وکړه او وګوره چې الله تعالی موږ ته څومره نعمتونه راکړي دي، چې دهغوی په وسیله کولای شو ټول وخت ځان له ګناهونو پاک وساتو. همدارنګه ان حضرت صلی الله علیه وسلم په یوه بل حدیث کې وفرمایل: یوه ورځ دوژخ الله تعالی ته وویل: زما یو شمیر برخې نورې برخې خورې، ماته اجازه راکړه چې ساه وباسم. الله تعالی ورته اجازه ورکړه چې په کال کې دوه ځلې ساه وباسي، یو ځل په دوبی او بل ځل په ژمي کې. بیا انحضرت صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "کله چې مو ډېر ساړه احساس کړل، هغه د جهنم تنفس دی، که مو کله سخته ګرمي احساس کړه هغه هم د جهنم تنفس دی. نو مور جانې! له جهنم څخه له خدایه ډېره پناه وغواړه، او له الله تعالی جل جلاله څخه د ښښنې، سلامتیا او جوړتیا غوښتنه وکړه.

هر وخت چې به ابوهریره رضی الله عنه له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه احادیث اوریدل مور ته به یې روښانه کول، هغې به په پوره ډاډ اوریدل او زوی ته به یې د خیر دعا کوله، ویل به یې: یا الله زه مي له زویه خوښه یم ته هم ترې راضي شې.

څنګه چي مخکي وويل شول ابو هريره خپل کور پرې ايښی وو او د نبوي مسجد په يوه څنډه کي يې ژوند کاوو، ډېر وخت نه وو تېر شوی چي هغه يوه برجسته څېره او د صفې د خلکو د سر سړی شو. تر څو چي پيغمبر عليه سلام حيات درلود، په هيڅ صورت يې صفه په خپل کور يا کوم بل ځای بدله نه کړه.

صفه په مسجد نبوي کي يوه چوتره وه، اهل صفه هغه فقير او نېستمن اصحاب وو چي په مدينه کي يې کور او کورنۍ نه درلودل او د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د ژوند په مهال به دوی پکي ويده کيدل او د خپل ژوند زيات وخت به يې هلته تيراوو، يو شمير به يې له رسول اکرم صلی الله سره پاتي کېدل او ماښامنۍ به يې ورسره کوله، دې حالت تر څو چي الله تعالی دوی شتمن کړل هم دوام درلود، پيغمبر عليه سلام به ابو هريره غوره کاوو، چي که به کومه صدقه پيغمبر عليه سلام ته راوړل کيده، هغه به يې ابو هريره ته ورکوله څو يې اهل صفه ته يوسي او ورباندي يې ووېشي. کله چي به پيغمبر عليه سلام ته هديه راوړل شوه يا به يې ابو هريره لېږه چي اهل صفه راولي او له پيغمبر عليه سلام سره يې وخوري او يا به يې د هغوی برخه ابو هريره ته ورکوله چي د اهل صفه وو تر منځ يې ووېشي.

اهل صفه لټان خلک نه وو چي کار يې نه کاوو، بلکي هميشه د علم او پوهي په زده کړه او له کفارو سره په جنګ

بوخت ول. له هغه سربېره ورته په مدینه کې کوم کار نه وو ځکه د مدینې خلک عموما نېستمن وو.

اهل صفه وو دومره لوږې او تږې تېرې کړې چې اخر د صبر او بردبارۍ نمونه شول. څرنګه چې د خدای او دهغه د رسول مینه تر هر څه ورته ګرانه وه. الله تعالی یې وضعیت بدل کړ هغوی ته یې شتمني ورکړه، غنیان شول او دا پیرزوینه یې هم د صبر او حوصلې په سیوري کې تر لاسه کړه.

ابوهریره رضی الله عنه د صفې په کلونو کې ډېرې نېستۍ او لوږې تېرې کړې او پوهېده چې دهغه لپاره یوازې دوه لارې شتون لري چې یوه ترې غوره کړي. یوه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره اوسېدل او د لوږو تحمل اویا له حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه لرې والی او مړیدل، خو هغه له پیغمبر علیه سلام سره اوسېدل غوره کړل، ځکه که یې کار کاوو نو له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره د اوسېدلو فرصت یې له لاسه ورکاوو او د حضرت محمد صلی الله علیه سلام د زرینو کلماتو له اورېدلو محروم کېده، له دې امله یې هوډ وکړ چې په دې لار کې هر غم وزغمي او خپل لوړ هدف ته ځان ورسوي. پوهېده چې له هرې سختۍ وروسته اسانې وي او الله تعالی به د فقر او لوږې د زغملو تر شا د علم او پوهې ارزښتمند بدیل ورکړي. همدارنګه پوهېده چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم غواړي تر څو خپل استعداد په لومړی مطلب کې په کار واچوي. ځکه له رسول الله صلی

الله علیه و سلم سره د یو ځای کېدو په لومړیو وختونو کي، یوه ورځ ابوهریره د نیالګي د کرلو په حال کي وو چي رسول اکرم صلی الله علیه و سلم ولید او ورته ویې ویل: څه کار کوې؟

ابوهریره وویل: غواړم نیالګی وکرم.

پیغمبر علیه سلام وویل: ایا نه غواړې تا ته تر دې نیالګي د ښه نیالګي کرل وښیم؟

ابوهریره وویل: هو، دخدای رسوله (صلی الله علیه وسلم).

پیغمبر علیه سلام وویل: د دې هري یوې جملې په ویلو سره تاته په جنت کي یو نیالګی کرل کیږي لکه: سبحان الله، الحمد لله، لا اله الا الله، الله اکبر (داسي باید ونه بولو چي رسول اکرم صلی الله علیه و سلم د نیالګیو له کرلو، کار او فعالیت سره مخالف وو بلکی غوښتل یې دهغه ذهن د دې دنیا له نیالګي څخه دهغې دنیا نیالګي ته او له عالم مادې څخه عالم معنی ته واړوي.[1])

ابوهریره پوه شو چي د پیغمبر علیه سلام موخه داده چي له هغه څخه جدا نشي تر څو علم او ذکر زده کړي او په هغه مشغول واوسي. هغه مهال په ابوهریره سختي ورځي تېري شوې، کله کله به دومره وږی شو چي له ډېري لوږي به په ځمکه ولوېده، چا چي نه پېژاند ګمان به یې کاوو چي هغه لېونی دی او بې هوښه شوی دی، نو ځکه به یې لاس په سر

[1] فارسي ژباړن

ورتېراوو او پښې به يې په نس کي ورته ښودې، ښوراوو به يې.

ابوهريره به ورته ويل: زه نه لېونی يم او نه ناروغ بلکې لوږې دې حال ته رارسولی يم. ډېر وخت به چي دهغه نس له لوږې درد کاوو، ډبره به يې پوري تړله.

کله چي به پيغمبر عليه سلام هغه په دې حال ليد، ناراحت کېده به، ځکه ډېر وخت به دهغه مبارک په کور کي هم څه شي نه پيدا کيدل، چي هغه ته يې ورکړي او دهغه لوږه پرې ماته کړي.

بايد ووايو چي ډېري داسي ورځي به وي چي د پيغمبر عليه سلام او نورو اصحابو په کورو کي به څه نه وو، ځکه له کفارو سره جهاد خلک له کار او تجارت څخه بې برخي کړي وو. کله چي به ابوهريره ليدل چي د صفې نور اصحاب هم وږي دي او د خوړلو لپاره څه شی نه لري او همدارنګه پيغمبر عليه سلام او نور اصحاب ورسره مينه کوي، زړه به يې تسکين کيده.

يوه ورځ چي ابوهريره رضی الله عنه ډېر وږی شوی وو او نور يې د تللو توان نه درلود، له مسجد سره نژدې ولوېد، پيغمبر عليه سلام يې لاسونه ونيول او راپورته يې کړ، کور ته يې بوت، هلته يې يوه اندازه شېدې ورکړې او ابوهريره وڅښلې، پيغمبر عليه سلام ورته د دوهم او دريم ځل لپاره

شيدې ورکړې تر څو چې موړ، په خوشحالي او دشکر په ادا کولو د مسجد په لور روان شو.

ابوهريره د خپلي لوږې له کلونو ښکلې خاطرې لري، چې کله به يې خپلو شاګردانو ته کولې، د هغوی حيرانتيا به يې راپاروله او هغوی به د دې صبور او لوی شخص کړنې ستايلې.

يوه ورځ ابوهريره رضی الله عنه د لوږې د شپو له خاطرو څخه يوه خپلو دوستانو ته داسې کوله: په خدای قسم چې له هغه پرته بل معبود نشته، کله به مې د لوږې له ډېروالی خپل نس په ځمکه موښه او ډبرې به مې پرې تړلې. يوه ورځ د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم او نورو اصحابو د تګ په لار کې کېناستم چې ښايي څوک مې دعوت کړي او خواړه راکړي، لومړی مې ابوبکر رضی الله عنه تر څنګ تېر شو، ددې لپاره چې د هغه توجه راواړوم د قران کرم د يوه ايات پوښتنه مې ترې وکړه، خو پام يې راته نشو او لاړ، بيا عمر رضی الله عنه راغی، له هغه مې هم ديوه ايت پوښتنه وکړه خو راته پام يې نشو او ولاړ. وروسته رسول اکرم صلی الله عليه وسلم رانژدې شو، څرنګه چې زما په حال پوهېده موسکی شو او ويې ويل: له ماسره راځه، په هغه پسې لاړم چې کورته يې ورسېدو حضرت محمد صلی الله عليه وسلم داخل شو او ماته يې هم د ننوتلو اجازه راکړه. کله چې کور مبارک ته يې ننوتم و مې ليدل چې په يوه ګيلاس کې يوه اندازه شيدې

شته. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پوښتنه وکړه چي دا شېدې له کومه شوې دي؟ ورته يې وويل: فلاني سړي هغه تاسو ته را استولې دي. بيا يې ماته وويل: ابوهريره!

ومي ويل: بلې! يا رسول اللهصلی الله علیه وسلم.

ويې ويل: لاړ شه اصحاب صفه دلته را وغواړه.

ابوهريره وايي: دپيغمبر علیه سلام له دې خبري سخت نارام شوم او له ځان سره مي وويل: دومره شېدې زما لپاره هم نه دي بس، څرنګه کولای شي ټول اهل صفه ماړه کړي، کاشکې يې ماته راکړې وای چي يوه اندازه قدرت مي پيدا کړې وای او کله چي هغه راشي حتماً حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ماته وايي چي شېدې هغوی ته ورکړم نو ماته به هيڅ شی پاته نه شي. ولي د رسول الله له اطاعت کولو پرته مي بله لاره نه درلوده، لاړم او اهل صفه مي د هغه مبارک کور ته رادعوت کړل. کله چي راغلل او ټول کښېناستل ماته رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وويل: ابوهريره! ولاړ شه، دشيدو لوښی واخله او هغوی ته شېدې ورکړه. ما هغوی ته شيدي ورکول شروع کړل، هر يوه چي شيدې څښلې، دومره به يې څښلې چي ماړه به شول، اخر دوی ټول ماړه شول او نوبت موږ دواړو ته راورسيد. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د شيدو ګيلاس رانه واخيست، په داسي حال کي چي موسکا يې کوله راته وويل: يوازې زه او ته پاتي يو، اوس کېنه او شيدې وڅښه.

زه کښېنستم او ومې څښلې. انحضرت صلی الله علیه وسلم راته بیا وویل چې وڅښه. د دریم او څلورم وار لپاره یې وویل چې وڅښه. کله چې موړ شوم ومې ویل: قسم په هغه ذات چې ته یې په حق رالېږلی یې، نور مې په نس کې تش ځای نه دی پاتې او پوره موړ شوم. وروسته پیغمبر علیه سلام وویل: ګیلاس ماته راکړه. ما ګیلاس ورکړ: بسم الله یې وویله او پاتې شیدې یې وڅښلې او هغه هم زموږ په څېر موړ شو.

ابوهریره رضی الله عنه په دوه دلیلونو لوږه وزغمله، یو دا چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلام په لوریې په هجرت کې ځنډ کړی وو او دوهم دا چې احتمال یې کاوو چې له پیغمبر علیه سلام سره به یې د یوځای والی وخت اوږد نه شي. نو ځکه یې لازمه بلله چې هر وخت له هغه مبارک سره وي، زمینه غنیمت وبولی او ددې لپاره هر مشکل وزغمي او پوهیده چې په راتلونکي کې به داسي ورځې راشي چې هم به موړ شي او هم د علم له نعمت څخه برخمن.

له فقر سره، سره ابوهریره استغنا درلوده، له چا یې څه نه غوښتل او چا ته یې شکایت نه کاوو، خو د اسلام له مبارک پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره به یې کله خپل راز شریکاوو. څرنګه چې یې لیدل ابوبکر صدیق او عمر رضی الله عنهما له پیغمبر علیه سلام وروسته د مسلمانانو په منځ

کي لوړ مقام لري، نو ځکه به يې کله کله هغوی هم د خپلو مشکلاتو په جريان کي اچول.

د مسلمانانو په منځ کي به يې يوازي له جعفر بن ابی طالب سره راز شريکاوو، هغه هم له ابوهريره سره مينه درلوده، نيکي يې ورسره کوله او د خيبر له غزا راپه دې خوا سره ملګري شوي وو.

خو ارمان چي د جعفر بن ابی طالب رضی الله عنه ژوند اوږد نه شو او له څه وخت وروسته د موته په جنګ کي په شهادت ورسيد. ابوهريره يې په جدايی وژړل، د هغه له ياد او ذکر سره به يې هروخت مينه کوله.

ابوهريره د سختي نېستی او لوږي سره سره د نېکبختي احساس کاوو، ځکه له پيغمبر عليه سلام سره يوځای والی ورته د دنيا تر ټولو غوره ځيز وو.

لوږي نشوای کولای هغه، د پيغمبر عليه سلام د خبرو له اورېدلو او د هغه تعليم ته له غوږ ايښودلو منع کړي.

هر شپه به يې څو نبوي حديثونه تکرارول او د قران کريم زده برخه به يې ابی بن کعب، عبدالله بن مسعود او زيد بن ثابت ته تېروله.

ابوهريره ته دا دري کسه ګران وو، ځکه هغوی خپل فارغ وختونه د ابوهريره په واک کي ورکړي وو، چي هغه همدا وختونه ورته د قران کريم ياد کړي اياتونه واوري، ترڅو پوه شي هغه اياتونه چي يې ياد کړي، اوس يې هم ياد دي او که

ترې هير شوي؟ هغه كلونه چي يې په صفه يعنى له حضرت محمد صلى الله عليه وسلم سره تېر كړل، دهغه د ژوند مهم وخت شمېرل كيده او همېشه به يې هغه صحنې يادولې.

د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم له رحلت وروسته پوه شو چي الله تعالى ورته څومره نعمت وركړى دى.

په صفه كي يې له خپلو مخلصو ملګرو سره وپېژندل، چي ايمان، دوستي، اطاعت، د مشكلاتو زغمل، دخداى او د هغه د رسول لپاره يو له بل سره را يوځاى كړي دي. دهغوى له ډلي كولاى شو د بلال بن رباح، براء بن مالک، حذيفه بن يمان، ابوذر غفارى، خباب بن ارت، زيد بن خطاب، بشير بن حضاصيه، سلمان فارسي، سفينه د پيغمبر عليه سلام غلام، ربيعه بن كعب د پيغمبر عليه سلام خادم او د عبدالله بن مسعود نوم واخلو.

دوى هغه فقير او نېستمن اشخاص ول چي تاريخ يې نومونه ،كړني او زړورتياوى د امت د امامانو او د هدايت د څراغونو په نامه په خپلو زرينو پاڼو كي د همېشه لپاره ثبت كړي دي.

ابوهريره له پيغمبر عليه سلام سره تر څو مياشتو تېرولو ورسته د قران كريم د حفظ او اورېدلو لپاره ډېره هڅه وكړه او په دې وتوانېد چي د پيغمبر عليه سلام سيرت د قران كريم د نزول له شروع را دېخوا په تفصيل سره ياد كړي. ځكه حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ورته خپل تېر حوادث ويلي وو او

ابو بکر صديق رضی الله عنه هم ورته د هجرت د استان په پوره ډول تشريح کړی وو. نورو اصحابو ورته د بدر، احد او خندق د غزواتو پېښې ويلې وې.

يادي شوې حادثې يې په ذهن کي داسي ثبت وې چي تو ا خپله يې ليدلې او دهغو پېښو شاهد وي.

له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم سره يې يو کال نه وو تېر شوی چي مدينه يې پرېښوده، له هغه مبارک صلی الله عليه وسلم سره د نجد سيمې ته ووت او په ذات الرقاع جګړه کي يې برخه واخيستله.

په دې غزا کي جګړه ونه نښته، که څه هم دوې دښمني ډلې يو له بلې ډېري وو پرېدې، ان تر دې چي مسلمانان مجبور شول د وېري لمونځ وکړي. په دې غزوه کي ابو هريره او نورو صحابه وو ډېري سختۍ تېري کړې، تر دې چي د پښو تلې يې زخمي شوې او نوکونه يې ولوېدل، نوځکه مجبور شول چي خپلي زخمي پښې د جامې په ټوټو وتړي چي له دې امله دا غزا ذات الرقاع بولي.

په همدې کال حضرت ابو هريره او نور ډېر اصحاب د رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د مکې په لور د عمرې د ادا کولو لپاره ووتل او د لومړي ځل لپاره د خدای کور ته ورغی، کله چي يې سترګې د کعبې په خونه ولګېدې، تر تاثير لاندي يې راغی او له سترګو يې اوښکي رواني شوې، خو څرنګه چي يې له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه

اوریدلي وو چې د الله تعالی رحمت دي په هغه چا وي چې نن ورځ قدرت ښکارونه وکړي نو يې په غرور او سرلوړي سره د کعبې په چاپېر طواف کاوو، هغه وخت يې وليدل چې حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د حجرالاسود له مچولو وروسته له نورو اصحابو سره د حج د مناسکو د ادا لپاره تېزي او پهلواني کوي، په کفر يې د اسلام د برتري يقين وکړ، د کفر سقوط او ورکېدل يې مشاهده کړل او پوه شو چې ژر به دا دين په مکه او نورو ښارونو کې خپور شي او الله تعالی به په نورو دينونو برتري ورکړي.

ابوهريره خپله نېستي او تنګ لاسي زغمله، خو ده اربېده هسي نه د مور په ايمان او يقين کې يې د نېستي له امله خلل پيدا شي، نو ځکه فکر ورسره پيدا شو چې د ځان لپاره يو کار پيدا کړي او له لاس ته راوړنو يې د مور او خپل ضرورتونه پوره کړي، له بل پلوه يې څار کاوو، هسي نه کار کول يې د پيغمبر عليه سلام د احاديثو د اوريدلو او د هغه سره په ناسته ولاړه کې کمی راولي. له څه وخت هڅي وروسته يې کار پيدا کړ، چې په خپل نظر يې، هغه کار نشوای کولای چې د پيغمبر عليه سلام د يوځای والی څخه يې لري کړي. د غزوان د لور بسرې سره چې يوه ستره صحابيه وه، په کار ولګېد، تر څو د دې او مېړه لپاره يې خدمت وکړي او په سفرونو کې ورسره ملګری وي، مزدوري به يې يوازي د ده او د ده د مور خوراک وي. له دې وروسته به يې د خپل خوراک يوه برخه

خپلي مورته وړه او له هغه څه يې نجات وموند چي دی ترې ډاريده.

بل پلو ابو هريره شرطونه درلودل چي د غزوان لور ومنل، له هغې جملې دا چي هغه به د پيغمبر عليه سلام سره د يوځای والي او د لمانځه له کولو څخه نه منع کوي، د شپې به کار نه ورباندي کوي، تر څو وکولای شي خپل وخت په جومات کي تېر کړي، په هغو سفرونو لاړ شي په کومو کي چي حضرت محمد صلی الله عليه وسلم وي. له پورتنيو شرطونو سره سره بيا هم داکار ددې سبب شو چي يو څه يې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له يوځای والی څخه ليري ولري، خو هغه څه چي به دده په نه شتون کي تير شوی وو، له پيغمبر عليه سلام ، انس بن مالک او عبدالله بن مسعود ﷺ څخه به يې په پوښتنه کولو جبران کول. د غزوان په لور او دهغې په مېړه ابوهريره خورا ګران وو، ځکه امين، قوي او دقران کريم او احاديثو حافظ وو او دهغوی حيرانتيا به يې راپاروله چي قران کريم به يې په ډېرښکلي غږ وايو او هغوی به تر تاثير لاندي راتلل، دپيغمبر عليه سلام احاديث به يې ورته ويل.

د غزوان لور هم په خپل نوبت له ابوهريره څخه غوښتي وو چي کاملا به د هغې د امر منونکی وي، هغه هم ورسره منلې وه، يوه ورځ يې وغوښتل چي ابوهريره وازمايي چي ايا رښتيا هم په خپله وعده او هوډ ولاړدی او که نه، ابوهريره ته يې وويل: لاړ شه په هغه اوښ سپور شه، ابوهريره سمدستي

په هماغه اوښ سپور شو ، بسرې او مېره يې وخندل او ويې ويل: کښېنه شه. ابوهريره له اوښ نه راکښته شو ، بيا يې ورته وويل: لوڅې پښې لاړ شه او له هاغې ځاه څخه يوه سلواغه اوبه راوړه. ابوهريره د امر سره سم لوڅې پښې په نا هواره ځمکه چې تېرې ډبرې يې درلودې لاړ، له هماغې ځاه يې بسرې ته اوبه راوړې.

بسرې خپل مېړه ته وويل: وګوره څومره په خپل عهد او وعده باندې ولاړ دی. قوی ايمان او دهغه تقوا د دې ښځې د حيرانتيا لامل شوه، دهغه دصداقت او په عهد باندې د وفا ليدل د بسرې علاقه له ابوهريره سره زياته کړه، خو د ابوهريره د کار ډېر وخت نه وو تېر شوی چې هغې ته ورغی او ورته ويې ويل: څرنګه چې زه له تاسو سره يم ، نشم کولای چې له پيغمبر عليه سلام سره په پوره توګه واوسم، په داسي حال کې چې ما د هغه لپاره خپله ځمکه او ټولي اړيکې پرېښودې،که ټوله دنيا ماته راکړې، د پيغمبر عليه سلام سره په يوه شېبه کښېناستلو به يې بدله نه کړم.

بسرې يې عذر ومانه او کار ته يې دپای ټکی کېښود . ابوهريره بېرته خپل لومړني ژوند ته وګرځېد او په صفه کې يې دحضـرت محمـد صـلی الله عليـه وسـلم ترڅنـګ واړول، ابوهريره له ورتګ سره سم دپيغمبر عليه سلام منادي( جار کوونکی ، اعلان کوونکی) دجهاد اعلان وکړ، پيغمبر عليه سلام اصحاب د جهاد تللو ته تشويق کړل، کله چې ابوهريره

د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم غمخواري ليدله چي خلک د جنګ جبهو ته په حرکت کي راولي، له ځان سره يې وويل: که څه هم پيغمبر عليه سلام تر خپل ځان را باندي ګران دی او نه غواړم چي يوه شېبه تري ليري شم، خو څرنګه چي هغه د جهاد امر کړی دی باید امر يې ومنم او جهاد ته لاړ شم.

نو له دي امله د اسلام له لښکر سره "موته" ته لاړ. مسلمانان د دښمن سره د سختي او نابيره جګړي څخه وېرېدل، ځکه د دښمن جنګي تجهيزات پر مخ تللي او جنګيالي يې هم زيات وو، په داسي حال کي چي د مسلمانانو شمېر کم او د پام وړ اسلحه يې هم نه درلوده. ابوهريره وليده چي ايمان، په څه ډول انسان د اسلحي له اړتيا څخه بې پروا کوي او دښمن د انسان په اند کمزوری او خوار ځلوي. همدارنګه د مسلمانانو د دريو وتليو قومندانانو څخه يې دعبدالله بن رواحه خبري مخکي له جنګه او هغه مهال اورېدلي وې چي احساس يې کاوو د مسلمانانو شمېره کمه ده.

عبدالله بن رواحه د اسلام لښکر ته په خپله وينا کي داسي وويل: اې ډلې! په خدای قسم. اوس چي کوم څيز نه خوښوئ، په واقعيت کي هغه څه ده چي د هغه لپاره له کورونو څخه راوتلي يو، يعني شهادت.

موږ په جنګ کي په قوت او سلاح باندي نه جنګېږو، بلکي هغه څه چي موږ حماسې او شهادت ته بولي ايمان دی،

چي د دې دين په سيوري کي زموږ په برخه شوی دی، نو هڅه وکړئ چي له دوو نعمتونو څخه يو په لاس راوړئ يا کاميابي او يا هم شهادت.

ابوهريره رضی الله عنه سمدستی هغه تاثير چي د عبدالله خبرو د اسلام په لښکر واچاوو، وليد، ځکه له هغه وروسته خلکو سمدستي ځانونه د دښمن سره د مقابلې لپاره تيار او د دښمن د لښکر په مقابل کي يې صفونه وتړل. ابوهريره د دښمن قوت، اسلحې او سپاره نظام ته چي د هغې ورځي په مختلفو اسلحو سمبال وو په فکر کي شوی وو چي ثابت بن اقرم په حال کي راووست، ثابت د ابوهريره په څنګ کي ولاړ او د هغه کړنو ته يې کتل، ورته ويې ويل: اې ابوهريره وينم، چي د دښمن ډېر لښکر ستا توجه جلب کړې ده. ورته ويې ويل: هو.

ثابت وويل: که ته له موږ سره د بدر په جنګ کي وای، نن د دښمن د جنګياليو په شمېر نه حيرانېدې، ځکه هغه څه چي موږ يې په هغه جنګ کي کامياب کړو، زموږ ډېر ښت نه وو، بلکي د ايمان د هغه قوت رڼا وه چي موږ يې په دښمن بريالي کړو.

جنګ شروع شو. ابوهريره په خپلو سترګو د ايمان کاميابي په کفر او د روميانو شاه تګ وليد. ويې ليدل چي څرنګه د مسلمانانو استقامت او مقاومت د روميانو څو زره کسيز لښکر ته ماتي ورکړه او هغوی يې سره وپاشل.

د موته جنګ د اتم هجري کال په اوله نيمايي کي پېښ شو، دا کال له حضرت محمد صلی الله عليه وسلم سره د ابوهريره د يوځای کېدلو دوهم کال وو.

دا جنګ يوازينۍ صحنه نه وه چي ابوهريره پکي برخه واخيسته، بلکي له هغه وروسته يې په نورو غزوتو او جنګونو کي هم ګډون وکړ او خپله مېړانه يې وښوده.

د موته له جنګ څخه دري مياشي نه وې تېري شوې چي حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د روژې په مياشت کي د مسلمانانو دلوی لښکر سره د مکې د فتحي هوډ من شو.

الله تعالی د فتحې دروازی يوه په بله پسي د حضرت محمد صلی الله عليه وسلام په وړاندي خلاصي کړې او مکه فتحه شوه، پيغمبر عليه سلام په داسي حال کي چي په اوښ سپور وو او د الله تعالی په وړاندی يې عاجري کوله، خپله ملا يې دومره کږه کړه چي نږدې وو تندی مبارک يې د اوښ له کجاوې سره ونښلي او په دې وخت کي يې سورت فتح تلاوت کاوو.

ابوهريره هم د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم تر څنګ حرکت کاوو، ياد يې شول چي مکې ته تر ننوتلو وړاندي رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ورته لويه دنده سپارلې وه هغه دا چي د فتحې وروسته انصار راټول او د هغه مبارک حضور ته يې راولي.

ابو هريره خپله دنده سر ته ورسوله او له هغه وروسته د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تر څنګ وو. د ابو هريره خوشحالي هغه مهال وروستي حد ته ورسېده چي ويې ليدل حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د کعبې په څنګ له بتانو سره حرکت کوي، په خپله امسا بتان وهي، نړوي يې او وايي: حق راغی او باطل لاړ. حق راغی او باطل لاړ او باطل به بيا رانه ګرځي.

ابو هريره د بتانو په ماتولو او د کعبې له خونې په ايستلو کي ونډه درلوده او له خدايه يې غوښتل چي د هغه د قوم د بتانو (ذی الخلصه او ذی الکفين) د نړېدو ورځ هم رانژدې شي او هغه څه چي د مکې د بتانو (لات، منات، عزی او هبل) په سرونو راغلل د هغه د قوم د بتانو په سر هم راشي.

د مکې له فتحي وروسته ابو هريره په يوه بله صحنه کي چي په عظمت او لوړتيا کي تر هغې کمه نه وه برخه درلوده، دا د حنين د جنګ صحنه وه. په دې جنګ کي مسلمانانو په خپل ډېروالي د غرور او په خدای جل جلاله باندي د توکل په بې پروايي کي سخته ضربه وليده او نژدې وو چي سخته ماته يې په برخه شي. خو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم، يو شمېر کمو اصحابو او د اسلامي جنګياليو ثبات او ټينګښت د جنګ بڼه بدله او ناکامي يې په کاميابي واړوله. په دې ورځ ابو هريره دې الهی کلام ته په فکر کي شو چي فرمايي:

﴿ لَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّهُ فِي مَوَاطِنَ كَثِيرَةٍ وَيَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنكُمْ شَيْئًا وَضَاقَتْ عَلَيْكُمُ الأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ ثُمَّ وَلَّيْتُم مُّدْبِرِينَ 25 ثُمَّ أَنَزلَ اللّهُ سَكِينَتَهُ عَلَى رَسُولِهِ وَعَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَأَنزَلَ جُنُودًا لَّمْ تَرَوْهَا وَعذَّبَ الَّذِينَ كَفَرُواْ وَذَلِكَ جَزَاء الْكَافِرِينَ 26

﴾ (٣٦) التوبه ٢٥-٢٦

ژباړه: ( مدد کړی دی الله تعالی ستاسو سره په ډېرو میدانونو کي او د حنین په ورځ کله چي خوشحاله شوئ تاسو په خپل ډېروالي باندي بیا هغه هیڅ په کار رانغلو ستاسو او تنګه شوه په تاسو باندي ځمکه سره دخپل ارتوالي نه، بیا واوړېدئ تاسو مخ په شا بیا نازل کړ الله تعالی دخپل لوري نه تسکین په خپل رسول او مؤمنانو باندي او نازل یې کړل پوځونه چي تاسو هغه نه وو لیدلي او عذاب یې ورکړ کافرانو ته، همدغه سزا ده د منکرانو.)

ابوهریره د الله تعالی دکلام عضمت ولید، ویې لیدل چي الله تعالی مسلمانانو ته دغزا د بس کولو نه وویل بلکي دستور یې ورکړ چي د ښمن تعقیب کړي او څرنګه چي د دښمن قومندان طایف ته تېښته کړې وه پیغمبر علیه سلام د طایف د محاصره کولو امر وکړ.

د ثقیف قبیلې خپلې کلا ته پناه یوړه، محاصره نوره هم سخته شوه او دښمنان پرېشانه شول، خو څرنګه چي د خپل ښار د دېوال په ټینګښت باوري ول، مقاومت یې وکړ او تسلیم نه شول.

وروسته رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تشخیص کړه چي که محاصره ماته شي د اسلام په ګټه ده او هغوی ممکن د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د اساني په لیدلو سره ایمان راوړي. نو ځکه د ثقیف د قبیلې محاصره ماته شوه او د اسلام لښکر د مکې په لور وګرځېد. له څه وخت وروسته د حضرت محمد صلی الله علیه وسلام وړاندوینه ریښتینې شوه او د ثقیف قبیلې ایمان راووړ.

د حنین د جګړې په پای او هغه وخت چي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم غنیمتونه وېشل، ابوهریره له عجیبې صحنې سره مخ شو، چي د هغه د احساساتو د پارولو لامل او د همېشه لپاره یې په زړه کي پاته شوه، غنیمتونه هم ډېر او هم باارزښته ول، رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه د قریشو سردارانو ته ورکړل، تر څو یې زړه په لاس راوړي او له اسلام سره یې مینه پیدا کړي. ابوهریره له صفوان بن امیه څخه چي هغه مهال له دوی سره وو، واورېدل چي ویل یې: تر اوسه پوري کوم پاچا داسي ارزښتناکي تحفې چاته نه دي ورکړې، له حضرت محمد صلی الله علیه وسلام پرته او زه شاهدي ورکوم چي له الله تعالی پرته بل معبود نشته او محمد یې استازی دی.

ابوهریره رضی الله عنه متوجه شو، چي پیغمبر علیه سلام له هغو غنیمتونو څخه څه شی انصارو ته ورنه کړل او دا کار د هغوی د ځور سبب شو، یوه او بل سره ویل: رسول الله صلی

الله علیه وسلم له خپل قوم سره ملاقات وکړ او موږ یې هېر کړي یو.

دا خبره د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تر غوږ او د هغه د غصې لامل شوه. ابوهريره وايي په هماغه ورځ مې د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم قهر ولید چې دد ې خبرې په اورېدلو سخت نا رام شوی وو، نو ځکه یې د انصارو یو مشر ولېږه څو هغوی سره راټول کړي. پيغمبر علیه سلام ورته ورغی او هغوی ته یې خبري وکړې. له ناستې وروسته انصار په خوشحالي سره لاړل او خپله نا ارامې یې له یاده ووته.

ابوهريره رضی الله عنه د ناستې د ختمېدو او د هغې د پایلو د اورېدلو منتظر وواو غوښتل یې چې پوه شې: انحضرت صلی الله علیه وسلم انصارو ته څه وویل چې دو مره ژر د هغوی قهر او غم په خوشالي بدل شو.

په دې مطلب باندي د پوهېدلو لپاره د یوه کم سنه خو ځیرک ځوان په لور لاړ او ورته یې وویل: کښېنه او راته ووايه چې ستاسو او رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تر منځ څه تېر شول او هغه صلی الله علیه وسلم تاسو ته څه وویل؟

ابوسعید وویل: پیغمبر اکرم صلی الله علیه وسلم موږ ته وویل: اې دانصارو ډلې! ولې له ما څخه خفه شوي یاست او دا څه خبري دي چې ستاسو له لوري ماته رسېدلې دي؟ ایا تاسو مخکې ګمراه نه واست چې زما په راتګ سره خدای

هدايت درته وکړ؟ ايا تاسي نېستمن نه واست، الله تعالی تاسو غنيان نه کړاست؟ ايا يو له بل سره دښمنان نه واست، الله تعالی ستاسو په منځ کي مينه او دوستي رانه وسته؟

موږ وويل: هو! په موږ باندي د الله تعالی زياته مهرباني او کرم دی.

هغه صلی الله عليه وسلم وويل: قسم په الله تاسو کولای شئ چي ووايا ست چي ته موږ ته په داسي حال کي راغلې چي خلکو دروا غ درپوري تړل، خو موږ دې تصديق وکړ، ضغيف وې موږ در سره ملګري شوو، بې کوره وې، موږ درته پناه درکړه، بېچاره وې موږ همدردي در سره وکړه. زه هم ستاسو خبري منم، اې دانصارو ډلې! ايا د ناڅيزي دنيا له امله چي ما ځينو خلکو ته د دې لپاره ورکړه څو يې زړونه واخلم. له ماڅخه خفه شوي یاست په داسي حال کي چي تاسو ته مي ډېره ارزښتناکه تحفه (اسلام) درکړی دی. اې دانصارو ډلې! ايا نه خوشحاله کېږئ چي نور له مادي مال او متاع سره کورونو ته ګرځي؟ قسم له الله چي زما روح يې په اختيار کي ده، که دهجرت مسئله نه وای ماخپل ځان يو انصاری باله، که ټول خلک يو ځای راټول شي او انصار بل ځای، زه دانصارو په لور ځم، الله تعالی دی په انصارو، دهغوی په زامنو او لمسيانو رحم وکړي.

اې ابوهريره کله چي خلکو د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم دا خبري واورېدې، دومره تر تاثير لاندي راغلل

چي ډېر يې وژړل. بيا له خپلو ځايونو پورته شول او حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلام ته يې وويل: موږ په دې خوشحال يو چي د الله تعالی رسول زموږ سره دی.

ابوهريره رضی الله عنه هم د ابوسعيد د خبرو وروسته وژړل او دا نوی تربيتي درس چي حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم انصارو ته ورکړی وو، هغه هم زده کړ.

ددې درس په سيوري کي وو چي انصار لوړ ځای، د ايمان او يقين لوړو پوړونو ته وختل او له دنيا څخه بې پروا شول.

د اتم هجري کال په ورستيو کي چي د ابوهريره دوه کلونه د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم سره تېر يدل، له حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم سره يې په يو ځای والی کي مختلفی صحنې ليدلې او له هغو څخه يې درس زده کړی وو.

څرنګه ابوهريره رضی الله عنه همېشه له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم سره يو ځای وو، هغه صلی الله عليه وسلم وليدل چي ابوهريره د علم او پوهي پوره ذخيره، د الله او د هغه د رسول لور ته د خلکو د دعوت کولو وړتيا لري او په ديني امورو باندي د هغوی د پوهولو له وړتيا څخه برخمن دی، تصميم يې ونيو چي هغه له علاء بن حضرمی سره بحرين ته ولېږي، ځکه د بحرين پاچا عاقل او پوه شخص دی په اجتماعي عدالت باندي په خلکو حکومت کوي او څوک چي

ورته پيغمبر عليه سلام د دعوت لپاره ور واستوي د هغه ښه راغلاست وايي.

پيغمبر عليه سلام ابو هريره ته خبر ورکړچي غواړي هغه له علاء سره بحرين ته ولېږي. ابو هريره د دې خبري له اورېدلو سخت ناخوښ شو، ځکه واقعاً هم له پيغمبر عليه سلام څخه ليري والی او جدايي ورته سخت کار وو. لومړی يې وغوښتل چي له حضرت رسول اکرم صلی الله څخه هيله وکړي چي د هغه له لېږلو صرف نظر وکړي، خو بيا يې فکر وکړ هسي نه په دې خبره د نافرماني مرتکب شي او پوهېده چي د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم پيروي يوازي په خوښي که نه ده، بلکي د مشکلاتو په وخت کي هم بايد د هغه د دستوراتو اطاعت وشي.

نو ځکه يې انحضرت صلی الله عليه وسلم ته وويل: سره له دې چي له تاسو څخه جلا کيدل راته ګران دي، خو زه هغه څه چي ته خوښوې او امر يې کوې، منم.

انحضرت صلی الله عليه وسلم ليک علاء ته ورکړ چي هغه منذر بن ساوی د بحرين حاکم ته ورکړي.

"بسم الله الرحمن الرحيم

د خدای د رسول محمد له لوري منذر بن ساوی ته!

د خدای سلام دي د حق او هدايت په پيرو باندي وي.

په دې وسیله زه تا اسلام ته رادعوت کوم، مسلمان شه چې سالم و اوسې او همداسې پخپل رعیت باندې حاکم پاته شې او په دې پوه شه چې ژر به زما دین تر وله دنیا ونیسي...

او هر څوک چې زموږ دلمانځه په څېر لمونځ وکړي او مخ زموږ د قبلې په لور واړوي او زموږ ذبیحه وخوري هغه مسلمان دی، له هغو حقوقو به برخمن وي کوم چې موږ ورڅخه برخمن یو او کوم تکلیفونه چې پر موږ دي پر هغه به هم وي."

او علاء ته یې وویل: که د بحرین پاچا تاسو ومنلاست، هلته پاتې شئ تر څو زما بل فرمان درته ورسېږي. د هغوی د شتمنیو صدقه او زکات واخلئ، د هغوی فقیرانو ته یې ورکړئ. بیا حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم علاء ته سپارښتنه وکړه چې له ابوهریره سره ښه سلوک وکړي.

ابوهریره چې وروستنۍ خبره له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه واورېده داوه چې ویل یې: "استودعک الله الذی لا یضیع و دائعه." تا خدای ته سپارم ځکه هغه څه چې خدای ته وسپارل شي نه ضایع کیږي.

ابوهریره له خپلې مور سره خدای پاماني وکړه. وروسته دواړه پیغمبر علیه سلام ته حاضر شول، خدای په اماني یې ورسره وکړه او د بحرین په لور لاړل.

ابوهریره رضی الله عنه د پیغمبر علیه سلام سره تر جدایي وروسته ډېر خفه شو، علاء هغه غم او خفګان چې د ابوهریره

په ځېره کي ښکاره وو، ليد. هغه ته يې وويل: ولي خفه يې؟
ابوهريره يې په ځواب کي وويل: په خدای قسم چي له پيغمبر عليه سلام نه له لري والي په بل څه خفه نه يم او ناکراريم چي په دې وخت کي به له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه احاديث وانه ورم.

علاء وويل: خوښ اوسه، ځکه ته د رسول الله صلی الله عليه وسلام په وړاندي د لوړ مقام څښتن يې او ماته يې ويلي چي له تاسره ښه رويه وکړم. هر څه چي غواړې ووايه چي درته ويې کړم.

دې خبرو د ابوهريره رضی الله عنه غم کم کړ او علاء ته يې وويل: ما د خپل ځان مؤذن غوره کړه او پرېږده چي تر تاسو وړاندي امين ووايم.

علاء وويل: هر څه چي خوښوې ويې کړه، خو راته ووايه چي ولي دادواړه څيزونه خوښوې؟

ابوهريره وويل: د الله له رسول صلی الله عليه وسلم څخه مي واورېدل: "المؤذن اطول الناس اعناقاً يوم القيامه."

اذان کوونکي به د قيامت په ورځ تر ټولو لوړ وي.

همدارنګه له هغه څخه مي وارېدل چي ويې ويل:

" اذا امن الامام فامنوا، فانه من وافق تامنه تامين الملائکة غفر له ماتقدم من ذنبه."

يعني کله چي امام امين ووايه، تاسو هم امين وواياست، ځکه د هر چا امين چي د پرښتو له امين سره هم مهاله شي، ټول ګناهونه به يې وبښل شي.

علاء، له اجر او بدلې سره د ابوهريره مينې په تعجب کې کړاو دا چې هغه به ورته د پيغمبر عليه سلام احاديث ويل خوشحاله کېده به او د ابوهريره له ملګرتيا څخه دومره خوښ وو چې په کالو کې نه ځايېده.

بحرين ته له رسېدلو وروسته منذر بن ساوی ته ورغلل. علاء د پيغمبر عليه سلام ليک هغه ته ورکړاو اسلام يې ورته وړاندې کړ.

ابوهريره قران کريم ورته وايه او د پيغمبر عليه سلام احاديث يې ورته روايت کول. د بحرين پاچا مسلمان شو او د قوم زياتو وګړو يې ايمان راووړ. علاء د منذر بن ساوی د اسلام راوړلو خبر پيغمبر عليه سلام ته ورساوه او د اذان په زړه پوري غږ په ټول بحرين کې په دلانګو شو.

الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر، الله اکبر، اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان لا اله الا الله، اشهد ان محمد رسول الله، اشهد ان محمد رسول الله، حی علی الصلوة، حی علی الصلوة، حی علی الفلاح، حی علی الفلاح، الله اکبر، الله اکبر، لا اله الا الله.

خلک د دې اواز په اورېدلو سره په چټکي سره مسجد ته تلل، صفونه يې برابرول، ابوهريره معمولا د علاء تر شا درېده او لمونځ يې په جماعت سره ادا کاوو.

ابوهريره څو مياشتي په بحرين کي پاته شو، د امهال يې کار يوازي دعوت او تبليغ وو او د اسلام احکام به يې خلکو ته ور زده کول.

د علاء سره په ملګريتوب خوشحاله وو، له منذر بن ساوی سره يې په ناسته چي يو شريف او لوړ سړی وو، خوند اخيست او له دواړو يې زياته مينه ليده.

ابوهريره د نهم هجري کال شپږ مياشي له علاء سره يوځای په بحرين کي تېري کړې. په دې وخت کي يې د الله په لور د خلکو له دعوت څخه له يوې هڅي هم مخ وانهړاوو. ډېری وګړي دده او علاء رضی الله عنهم د دعوت په اثر مسلمانان شول. خو ابوهريره رضی الله عنه په بې صبري سره د مدينې د بېرته تلو منتظر او د نړی تر ټولو د محبوب ترين انسان تر څنګ د اوسېدلو په هيله وو. همېشه به يې دعا کوله چي خدای هغه ته د مدينې د تګ زمينه اسانه کړي. اخر يې دعا قبوله شوه او حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم يو کس د ابان بن سعيد بن عاص په نوم د هغه ځای (بحرين) والی مقرر او له يوه ليک سره ور ولېږه.

پيغمبر عليه سلام په هغه ليک کي له علاء او ابوهريره ﷺ غوښتي وو چي مدينې ته راشي. ټول وجود يې له خوښي ډک

شو ، ځان يې تيار کړ او د مدينې په لور لاړل . ابوهريره په صفه کې خپل پخوانى ځاى ونيو او يو ځل بيا د اهل صفه وو لاربښوونکى شو . بيا له پيغمبر عليه سلام سره ملګرى او يوځاى شو . کومه مينه او علاقه چې يې له علم سره درلوده، بيا د علم او پوهې په حاصلولو مشغول شو او غوښتل يې هغه څه تر لاسه کړي چې په غيابت کې يې له لاسه ورکړي وو .

پيغمبر صلى الله عليه وسلم د همدې نهم هجري کال په رجب مياشت که له يوه لوى لښکر سره چې مشري يې په خپله په غاړه درلوده، د تبوک په لور حرکت وکړ . ابوهريره هم له رسول الله سره وو ، هغه او نورو اصحابو په دې غزوه کې سختي او نه زغمل کېدونکې ستړياوې تېرې کړې . ابوهريره په دې جنګ کې زياتې پېښې ياد ته وسپارلې .

د هغو پېښو له جملې څخه چې په حقيقت کې يې لوى پيغام له ځان سره درلود ، يوه دا وه چې د تبوک په جګړه کې د مسلمانانو خواړه ختم، ډېر وږي شول او حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ته يې وويل : اې د خداى رسوله که اجازه راکړې موږ خپل اوښان حلال و چې له لوږې خلاص شو . پيغمبر عليه سلام ورته اجازه ورکړه، په دې وخت کې عمر رضى الله عنه رسول الله ته راغى او ويې ويل : يا رسول الله که داسې وشي، زموږ سورلۍ به کمې شي، له دوى وغواړه چې هرڅه لري څو يې راوړي، تاسو دعا وکړئ او له خدايه

وغواړئ چي په هغوی کي برکت واچوي. امید دی چي دا مشکل به الله تعالی په دې دعا سره حل کړي.

پیغمبر علیه سلام د حضرت عمر نظر ته د احترام په سترګه وکتل او امر یې وکړ چي څادر دې هوار کړي، له صحابه وو یې وغوښتل چي خپل کم کم خواړه راوړي او یوځای یې واچوي. یو له یوه موټ دانو سره راغی، بل څه خرما درلوده او هغه بل هم یوه ټوټه ډوډۍ او ...

په دې ترتیب هرچا چي څه درلودل په هماغه څادر کي یې واچول.

وروسته انحضرت صلی الله علیه وسلم د دعا لاسونه د الله تعالی درګاه ته پورته کړل او له خدایه یې وغوښتل چي په دې کم خوراک کي برکت واچوي. بیا یې وویل: خپل لوښي ډک کړئ، ټولو اصحابو خپل لوښي له خوراک څخه ډک کړل، تر دې چي په لښکر کي خالي لوښی پاتي نشو. له هغو خوراکونو یې وخوړل او ماړه شول.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "اشهد ان لا اله الا الله وانی رسول الله لا یلقی بهما عبد غیر شاک فیجب له الجنة" شاهدي ورکوم چي له الله تعالی پرته بل معبود نشته او شاهدي ورکوم چي زه یې پیغمبر یم او هر څوک چي د الله تعالی د الوهیت او زما د رسالت په منلو کي شک نه لري او په دې حال کي له الله تعالی سره ملاقات وکړي، جنت ته به داخل شي.

د تبوک غزا پای ته ورسېده او حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له لښکر سره مدينې ته راغی.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه کال د حج په مراسمو کي ابوبکر صديق رضی الله تعالی عنه امير ټاکلی وو، ابوهريره له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم څخه اجازه وغوښته چي له ابوبکر صديق سره حج د ادا کولو لپاره مکې ته لاړ شي. انحضرت صلی الله علیه وسلم ورته اجازه ورکړه. ابوهريره له حضرت ابوبکر صديق او نورو اصحابو سره يوځای مکې ته لاړ او د حج فريضه يې ادا کړه. همالته ابوبکرصديق يوه ډله اصحاب وټاکل چي په هغو مراسمو کي چي مسلمانان او مشرکين ټول يوځای وي، ووايې:

اې خلکو، له مسلمان کس پرته به بل څوک جنت ته داخل نه شي او څوک چي لوڅ (بربنډ) وي، حق نه لري چي د کعبې طواف وکړي او له دې ورسته به مسلمانان او مشرکين په حج کي سره جمع نشي څوک چي عهد لري، عهد به يې تر هماغه معلومې نېټې پوري وي. څوک چي عهد نه لري تر څلور مياشتي ورسره عهد کيږي.

ابوهريره په منی کي له نورو اصحابو سره يوځای د حاجيانو د خېمو په شاوخوا کي ګرځېده او دا مطلب يې هغوی ته رساوو.

لسم هجری کال د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په ژوند کي ارام کال وو. په دې کال کي نه جهاد وشو او نه رسول

اکرم صلی الله علیه وسلم له مدینې څخه بهر ووت. ځکه الله تعالی د عربو ټوله جزیره په اسلام مشرفه کړې وه. دمکې له فتحي وروسته پیغمبر علیه سلام ته له هر لوري زیاتې ډلې راتلې او اسلام یې مانه. نوځکه ددې کال ټولي میاشتي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم مدینه کي پاتي شو. پرته له هغو ورستیو میاشتو چي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په کښي د حج الوداع لپاره مکې ته لاړ.

لسم هجري کال، له رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره د ابوهریره رضی الله عنه د یوځای کېدو څلورم کال وو. هغه په دې کال کي له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره خورا نژدې، د هغه په خدمت کي وو او همدارنګه یادولو ته یې توجه ډېره وه. په تېرو کلونو کي یې دا فرصتونه په لاس نه وو راوړي. په دې کال کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مینه له ابوهریره سره زیاته شوې وه او هم هغه مبارک صلی الله علیه وسلم ورته ځانګړې سپارښتنې کولې. چي ابوهریره به یادولې او ورباندې به یې عمل کاوو.

یوه ورځ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ابوهریره ته وویل: "اې ابوهریره پرهېزګاره اوسه چي تر ټولو خلکو عابدترین شخص شې، قانع اوسه چي تر ټولو خلکو شاکرترین شې، هر څه چي ځان ته خوښوې د نورو لپاره یې هم خوښ کړه چي مؤمن شې، هر څوک چي دې ګاونډي توب

خوښوي د هغه همسايه توب خوښ کړه چي مسلمان واوسې، کمه خندا کوه ځکه ډېره خندا د انسان زړه وژني."

بيا يې هغه ته د دريو نورو څيزونو سپارښتنه وکړه: اول درې ورځي په مياشت کي روژه نيول، د چاښت د دوو رکعتونو لمونځ کول، دريم هم تر خوب مخکي د وتر لمانځه کول.

ورځ په ورځ د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم نصيحتونه او سپارښتې، ابوهريره رضی الله عنه ته زياتېدې، کله به يې يوه خبره يو ازي هغه ته کوله او ورته ويل به يې چي هغه خپره نه کړي، ورو ورو دا خصوصي تعليم زيات شو، تر دې چي ابوهريره رضی الله عنه د اسلام له لويو معلمينو څخه وشمېرل شو. له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه د زياتو روايتونو په نقلولو کي کله کله خلکو پرې انتقاد کاوو.

د لسم هجری کال د روژې مبارکه مياشت را ورسېده. حضرت محمد صلی الله عليه وسلم له خپل لومړني عادت سره سم چي نور کله به د روژې د مبارکي مياشتې لس وروستنۍ شپې په مسجد کي معتکف کېده سږ کال شل ورځي په مسجد کي په اعتکاف کښېناست. په مسجد کي د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم له حضور څخه اهل صفه خورا خوښ شول، دا خوښي يې په دې نوره هم زياته شوه چي رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته به هره ورځ جبرائيل عليه سلام راته او د قران کريم يوه برخه به يې

وربانديي نازوله. دوی د وحي په نزول او د جبرائيل عليه سلام په راتګ پوهېدل.

ابوهريره دا مهال له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه زياته ګټه تر لاسه کړه. ځکه هغه هم په مسجد کي معتکف وو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم تر څنګ يې ژوند کاوو. يوه ورځ رسول اکرم صلی الله عليه سلم ورته وويل چي د فطر هغه صدقې چي مسلمانان يې راوړي په يوه کور کي يوځای کړي، څو يې وروسته رسول اکرم صلی الله عليه وسلم نېستمنو اصحابو ته ووېشي او ابوهريره يې د هغه کور مسؤل وټاکه.

هغه به سهار او ماښام هغه کور ته ورته، ليدل به يې چي هر څه په خپل ځای پراته دي نو دارامي احساس به يې کاوو. خو متاسفانه يوه شپه يې وليدل چي يو نا اشنا کس د صدقاتو کوټې ته داخل شو او له خرما څخه يې د لوښو په ډکولو شروع وکړه. ابوهريره هغه ته ورغی ويې نيو او ورته ويې ويل: تا رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ته بيايم چي جزا در کړي.

هغه کس په غوړه مالي شروع وکړه او په نرمي سره يې خبري کولې چي زه ضرورت لرم، څو اولادونه لرم، د ډېري مجبوري له امله دي کار ته اړ شوی يم. د ابوهريره زړه وربانديي وسوځېد او په دې ګمان چي دا سړی د مجبوري له امله غلا ته اړ شوی دی، خوشی يې کړ.

سهار مهال حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ابو هریره ته وویل: تېره شپه دي له خپل زنداني سره څه وکړل؟

ابو هریره حیران شو او ویې ویل: اې دالله رسوله ماته یې وویل چې سخت ضرورت لرم، زما زړه پرې وسوځېد او خوشې مې کړ.

پیغمبر علیه سلام ورته وویل: هغه دروغ درته ویلي دي، ډېر ژر به بېرته درته راشي.

ابوهریره باور وکړ چې هغه سړی به بیا راشي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته ویلي وو چې هغه راګرځي. نو ځکه راتلونکې شپه ابو هریره د هغه د نیولو لپاره کمین ونیو. کله چې شپه تیاره شوه، هغه سړی راغی د کوټې دروازه یې پرانیسته او د خرما په ټولولو یې شروع وکړه.

ابوهریره ورباندي حمله وکړه، تر ګرېوان یې ونیو او ویې ویل: تا ماته نه وویل چې بیا نه راځم.

داځل دي حتماً رسول الله صلی الله علیه وسلم ته بیایم، چې د مسلمانانو په منځ کې رسوا شې، خو هغه سړی ژبور وو، ویې کولای شوای د ابوهریره عواطف راوپاروي او ځان ورڅخه خلاص کړي.

دوهمه ورځ بیا ورته رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وویل: ابوهریره بندي دي څه وکړل؟

ابـو هريره وويـل: هغـه لـه خپلـې سـختي مجبـوري څخـه شـکايت کـا وواو ويـې ويـل: ډېـر اولادونـه مـي وږي دي. مـا ورباندي رحم وکړاو خوشی مي کړ.

پيغمبر عليه سلام وويل: هغه درته درواغ ويلي دي او ژر بيا هم راګرځي.

ابوهريره د دريم ځل لپاره انتظار کاوو چي هغه بيا راشي، ويـې نيسي او رسول الله صلی الله عليه وسلم تـه يې بوزي. ناڅاپـه يـې وليـدل چـې د تېـرو شـپو پـه څېـر راغـی، د کـوټې دروازه يـې خلاصـه کـړه او پـه غـلا يـې شـروع وکـړه. دا ځـل ابـوهريره وربانـدي لويـه چيغـه وکړه پـه هغـه يې حملـه وکـړه، ويـې نيـو او ويـې ويـل: دا دريـم ځـل دی چي تـه وايـې: بيـا نـه راځم، خو بيا راشې، نو ځکه يې په يوه لا س تر بازو او په بل تر ګرېوان ونيو او په خپل قدرت يې د ځان پـه لور کش کړ. هغه سړي چي وليـدل دا ځـل واقعـاً کـار جدي دی، بلـه بهانـه يـې استعمال کـړه تـر څـو لـه هغـه څخـه ځـان خـلاص کـړي. هغـه پوهېده چي ابوهريره لـه علم او پـوهي سره زياتـه مينـه لري او علمي مسئلو تـه چي پـه هر قيمت وي غـوږ ږدي، هغـه تـه يې وويـل: ما پرېږده، تاته به داسي خبري وښيم چي د هغو په وجه به الله تعالی تاته زيات اجر درکړي.

کله چي ابوهريره " خبري وښيم" جمله واورېده لاسونه يې شل شول او قهر يې له منځه لاړ.

هغه يې خوشې کړاو ويې ويل: ووايه، چي ووينم هغه کومي خبرى دي؟ هغه کس دابوهريره په ځواب کي وويل: کله چي بستر ته دخوب کولو لپاره لاړې نو ايت کرسي ووايه . يعني :

﴿ اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ اللّهُ لاَ إِلَـهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِنْدَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَاء وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضَ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ﴾

(دالله تعالى نه سوا بل هيڅوک معبود نشته، ژوندى دى د ټولو سمبالوونکى، نه يې شي را لاندي کولى پرکالي او نه خوب ، هم د ده دي هغه چي په اسمانونو او په ځمکه کي دي، داسي څوک دى چي سفارش وکړي دهغه خواته مګر دهغه په اجازه سره، پېژني هغه، څه چي د خلکو په وړاندي دي او څه چي د هغوى نه وروسته دي او دا ټول سراسري نه شي را لاندي کولى څه څيز لره دهغه د معلوماتو ځيني مګر څومره چي هغه يې وغواړي، ځايېدل دي دهغه په کرسي کي د ټولو اسمانونو او ځمکي، او ګران نه دي هغه ته سمبالول ددې دواړو او هم دى دى د ټولو نه زيات لويي والا)

هغه وخت به الله تعالی تاته داسي ساتونکي وټاکي چي تر سهاره به هیڅ شیطان ته اجازه ورنه کړي څو تاته نژدې شي.

پيغمبر عليه سلام په ارامي سره د هغه غوږ کي وويل: بندي دي څه کار وکړ؟

ابوهريره وويل: اې رسول الله ماته يې څو کلمې راوښودې د هغوی په بدل کي مي خوشی کړ.

پيغمبر عليه سلام وويل: هغه کوم کلمات وو؟

ابوهريره وويل: ايت کرسي يې وويله او ويې ويل چي دادي.

د لسم هجری کال په پای کي رسول الله صلی الله عليه وسلام د حج د فريضې د اداکولو لپاره له مختلفو قبيلو څخه وغوښتل چي د هغه سره ملګرتيا وکړي، مسلمانانو د هغه غوښتني ته لبيک وو ايه.

د ذی الحجې د مياشتي په پای کي چي په زرهاوو کسه مسلمانان يې تر شاول د مکې په لور يې حرکت وکړ.

دا تر ټولو لويه ډله وه چي ابوهريره په خپل ژوند کي ليدله او د ژوند تر ټولو مهم سفر يې بلل کېده.

په دې مبارک سفر کي هغه ډېر حيرانوونکي څيزونه وليدل. له هغې جملې څخه له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره د خلکو عقل نه منونکې مينه او محبت او د هغوی راټولېدل د هغه د مبارک وجود په ډېوه باندي.

همدارنګه د هغوی د خبرو کولو طريقه له رسول الله سره داسي وه چي دا دوستي يي تعبير کوله.

خلکو يو له بل سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم د اوداسه داوبو په را اخيستلو، په خپلو سرونو او مخونو باندي په اچولو کي سيالي کوله او هغه مهال چي هغه مبارک صلی الله عليه وسلم به سر ږمنځاوو خلکو به د هغه صلی الله عليه وسلم د ويښته مبارک د تر لاسه کولو لپاره يو له بله مخکي والی کاوو.

ابوهريره د رسول الله صلی الله عليه وسلم لويه معجزه ليدلې وه، هغه دا چي د سلهاوو قبيلو زړونه چي تر پرون پوري يې يو بل وژل او د يوه او بل د وينو تږي وو، سره نژدې، يو ځای سره راټول او د هغوی په منځ کي مينه او محبت پيدا کړي.

مکې ته له رسېدلو وروسته ابوهريره له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويل يې: اې خلکو کوښښ وکړئ چي مناسک له ما څخه زده کړئ. نو ځکه ابوهريره په پوره توګه څار کاوو چي کوم خبره يا عمل ورڅخه له لاسه و نه وزي. د خلکو د زياتي ګڼي ګوڼي په منځ کي، د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د مبارک وجود تر چاپېر، چي کله به ځيني خلک د يو بل په اوږو تلل څو د رسول الله صلی الله عليه وسلم خبري واوري او د مبارکي څېري په ليدلو يې برکت حاصل کړي، هغه ته په نژدې کېدلو سره نېکبختي تر

لاسه کړي. ابو هریره سره له دې چې په تکلیف کېده، خو د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم هیڅ خبره او فعل یې له لاسه ورنکړ.

اخر هغه مبارک کاروان د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تر څنګ د حج مناسک ادا کړل. مسلمانانو په حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم پوري اقتدا وکړه او د حج مناسک یې ورڅخه زده کړل. د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره په یو ځای والی نېکمرغه شول او د حج د مناسکو وروسته خپلو کورونو ته وګرځېدل.

پیغمبر علیه سلام هم له هغو کسانو سره چې له مدینې یې ورسره ملګرتیا کړې وه بېرته مدینې ته لاړ. مدینې ته له راګرځېدلو وروسته ابو هریره ولیده چې په دې سفر کې یې له ایمان، یقین، محبت او فقهي څخه ډېر څه زده کړي دي. خو د پیغمبر علیه سلام یوې خبرې چې د عرفې په میدان کې یې کړې وه دی غمګین او عجیب اثر یې ورباندې پرېښود.

پیغمبر علیه سلام په عرفات کې مسلمانانو ته خطاب کړی وو: اې خلکو دا خبرې له ماڅخه واورئ، ښایې راتلونکی کال مو ونه وینم.

حضرت ابو هریره به له ځانه پوښتل چې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له دې خبرې څخه څه مطلب وو؟ ایا پیغمبر علیه سلام ته الهام شوی چې د رحلت وخت یې را رسیدلی؟ او هغه امت له دې څخه وډاراوو؟ څو مره لوی

مصیبت دی که رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له دې دنیا نه لاړشي. همدارنګه له ځان سره به یې ویل چي زما لپاره به ثومره بد وخت وي چي د هغه له صحبت او یوځای والی څخه پاتي شم. ځکه زه ډېر وخت له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نه وم، تصمیم یې ونیو چي له دي وروسته به په پوره ډول هغه صلی الله علیه وسلم ته متوجه او له هغه سره وي، یوه شېبه به هم له لاسه نه ورکوي او په ټول وجود به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي وي.

سوالونه یې زیات شول، په څه باندي چي نه پوهېده له انحضرت صلی الله علیه وسلم نه به یې پوښتنه کوله او ویل به یې: ماته توصیه کوه. پیغمبر علیه سلام به هم د هغه سوالونو او غوښتنو ته ځواب وایه.

ډېر وخت تېر نه شو؛ رسول اکرم صلی لله علیه وسلم سخت ناروغ شو، نه یې شوای کولای چي مسجد ته لاړ شي او امات وکړي. د ناروغي په شپو کي چي یوه ورځ یې لږ حالت ښه وو مسجد ته لاړ. په منبر کېناست او د الله تعالی تر حمد او ثنا وروسته یې خلک نیکو کارونو ته وبلل او ویې ویل: "اې خلکو یقیناً الله تعالی له خپلو بندګانو هر یوه ته واک ورکړی دی چي له دوو لارو یوه غوره کړي یا دنیا او نعمتونه یې، یا اخرت او هغه څه چي له الله تعالی سره دي، هغه صرف هغه څه انتخاب کړي چي له الله تعالی سره دي."

ډېرو خلکو فکر وکړ چې د رسول الله هدف له نيکو او صالحو خلکو څخه يو دی، خو ابوبکر رضی الله عنه يې په هدف پوه شو چې مطلب يې خپل ځان مبارک دی، په ژړا يې شروع وکړه او ويې ويل: ځان او مال له تانه قربان کړم.
ددې حال په ليدلو د ابوهريره رضی الله عنه غم زيات شو او د ژوند روښنايي ورباندي تياره شوه، ځکه څو ورځې وې چې د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه و سلم تر څنګ ناست وو خو د هغه د ليدلو نېکمرغي يې په نصيب نشوه، اهل صفه وو تږوله ورځ د ابوبکرصديق رضی الله عنه په خبره کي فکرا و خبري کولې.
ابوهريره ابی موهيبه ته چې د رسول الله له خادمانو څخه وو وويل: ايا رسول الله چې څه وويل او ابوبکر يې ځواب ورکړ، مقصد خپله انحضرت صلی الله عليه وسلم وو؟
ابوموهيبه وويل: فکر کوم همداسي ده، ځکه څو ورځي مخکي له دې چې هغه مريض شي، په داسي حال کي چې د شپې يوه برخه تېره شوې وه ماته يې وويل: اې ابوموهيبه! ماته امر شوی دی چې په اهل بقيع باندي استغفار ووايم.
زه له هغه مبارک صلی الله عليه وسلم سره لاړم، کله چې د مړيو د قبرونو په منځ کي ودرېد داسي دعا يې وکړه:
"اسلام عليکم يا اهل المقابر لحيناً لکم اصبحتم فيه مما اصبح الناس فيه، اقبلت الفتن کقطع اليل المظلم تتبع اخرها اولها الاخره شر من الاولی"

ژباړه : اې د قبرونو خاوندانو پر تاسو دې سلام وي، هغه څه چې په تاسو کېږي تر هغو اسانه دي چې په خلکو کېږي، فتنو د شپو د تيارو په شان يو په بل پسې هجوم راوړی دی، وروستنۍ تر پخوانيو ډېرې بدې دي.

بيا يې ماته مخ راواړاوو او ويې ويل: اې ابوموهيبه! په د نيا او هغې کې د پاته کېدلو او له هغې څخه د تللو او په جنت کې د پاته کېدلو کيلياني ماته راکړل شوې دي، زه مختاريم چې يوه ورڅخه غوره کړم يا په دنيا کې پاته کېدل او يا دالله تعالی ملاقات ته تلل.

ما هغه مبارک ته وويل: يا رسول الله زما مور او پلار دې تر تا قربان وي، لمړی په دنيا کې پاته کېدل او بيا جنت تلل ته غوره کړه.

ان حضرت صلی الله عيله وسلم وويل: په خدای قسم چې ما د هغوی له منځ څخه د الله تعالی ديدار غوره کړی دی.

بيا يې د بقيع د اهل لپاره د ښښني غوښتنه وکړه.

د هغې ورځې له سهار څخه د رسول الله صلی الله عليه وسلم ناروغي او درد شروع شو.

دې ناروغي د رسول الله صلی الله عليه وسلم او صحابه وو په منځ کې فاصله واچوله، نو ځکه اصحاب غمګين شول په تېره بيا اهل صفه، چې د رسول الله د ديدار ډېر غوښتونکي وو او د رسول الله صلی الله عليه وسلم له ناروغتيا څخه ډېر نارام شول.

ابو هريره چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ملاقات ډېر لېوال وو اخر يې جرات وکړ او د ملاقات اجازه يې وغوښته ، ان حضرت صلی الله عليه وسلم ورته اجازه ورکړه، ابو هريره داخل شو ، سلام يې واچا وو او ودرېد ، ويې ليدل چې رسول الله صلی الله عليه وسلم پروت دی، مبارک سر يې د علی بن ابی طالب په سينه کې ايښی دی او علی رضی الله عنه په خپل لاس هغه نيولی دی. کله چې ابوهريره دا حال وليد اوښکې يې روانې شوې، رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ورته په مينه ناک ډول وويل: " نژدې راشه ابوهريره." ابوهريره ورنژدې شو تر دې چې د پښو ګوتې يې د هغه مبارک د پښوله ګوتو سره ولګېدې، بيا يې ورته وويل: کښېنه. ابوهريره کښېناست.

پيغمبر عليه سلام وويل: " ابوهريره! تا ته د داسې صفتونو د درلودلو توصيه کوم چې تر څو ژوندی يې پرې يې نه ږدې. "

ابوهريره وويل: " قول در سره کوم چې تر څو ژوندی يم ورباندې به عمل کوم. "

ان حضرت صلی الله عليه وسلام وويل : " د جمعې په ورځ غسل کوه، په اول وخت کې د جمعې د لمانځه لپاره لاړ شه، همالته (مسجد کې) له ناوړه کار او بېهوده خبرو څخه ځان وساته، تاته په مياشت کې د درېو ورځو د روژې د نيولو توصيه کوم، ځکه دا کار د ټول کال د روژې د نيولو په څير

دی، تاته د سهار د وو رکعتو سنت لمانځه د اداکولو وایم، هغه مه پرېږده، که څه هم ټوله شپه دې لمونځ کړی وي، ځکه په هغه کي د عفوی او ښنني امید زیات دی."

ابو هريره وویل: ای د الله رسوله د انکتې پتې وساتم او که یې نورو ته هم ورسوم؟

پیغمبر علیه سلام وویل: نورو ته یې هم ښکاره کړه.

ابو هريره په داسي حال کي رسول الله ته راغی چي خپلي غوښتني یې په لاس راوړې، سترګي یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دیدا رسرې شوې او نوی درس یې زده کړی وو، خو ارمان چي نه پوهېده چي دا وروستنۍ کلمې دي چي له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه یې اوري.

د یوولسم هجری کال د ربیع الاول د میاشتي په دوولسم تاریخ چي د دوشنبې ورځ وه، اهل صفه په خپل ژوند کي تر ټولو له خفه کوونکې، غم لرونکې، تریخي او ناګواري خبري سره مخ شول، د هغې له اورېدلو سره یې سخت ټکان وخوړ، حیران شول، هغه خبر د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات خبره وه. نړۍ یې سترګو ته توره تیاره شوه، لوی غم او پرېشاني په خپله غېږ کي واخستل، ډېر یې وژړل.

د ابوهريره د غم او خپګان پوښتنه مه کوه، ځکه هغه ته د خپل ځان، دنیا او هغه څه چي په دنیا کي دي د هغوی له مینځه تلل اسان وو خو نه د رسو ل الله صلی الله علیه وسلم وفات.

سر يې ګرېوان کي کښته کړ، هغه لويه نېکبختي له لاسه ورکړې وه، په دې لويه پرېشاني چي ټول جهان يې په غم کي کړ افسوس کاوو.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم د وفات خبره لکه چي د ټولو دهستي په زېرمه اور لګېدلی وي، په ښار کې وګرځېد، خلک په منډه مسجد ته راغلل او سره يو ځای شول.

په هغوی حيرت او لوی غم پرېوتلی وو، ټول له دې حيرانوونکې پېښې نا ارامه وو، خو عمر رضی الله عنه له ټولو نا ارامه وو، نوځکه د خلکو په مينځ کي ودرېد او ويې ويل: اې خلکو رسول الله نه دی وفات شوی.

بيا ابوبکر صديق رضی الله عنه راغی، د رسول الله صلی الله عليه وسلم څېرې ته يې وکتل، باور يې وشو چي رسول اکرم صلی الله عليه وسلم له دې فاني دنيا سره مخه ښه کړې ده، مبارکه څېره يې ښکل کړه او ويې ويل: پلار او مور مي دي تر تا قربان وي، ښه ژوند دي وکړ او ښه وفات شوې.

بيا هغو خلکو ته چي په جومات کي راټول شوي وو ورغی، د الله له حمد او ثنا وروسته يې وويل: الله تعالی په قران کريم کي فرمايلي دي:

﴿ وَمَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ من قَبْله الرُّسُلُ أَفَإِن مَّاتَ أَوْ قُتلَ انقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ وَمَن يَنقَلِبْ عَلَىَ عَقِبَيْهِ فَلَن يَضُرَّ اللّهَ شَيْئًا وَسَيَجْزِي اللّهُ الشَّاكِرِينَ ﴾ ال عمران: ۱۴۴

ژباړه : او محمد خو یو رسول دی، تېر شوو د ده نه وړاندې ډېر رسولان. که دی مړ شو او یا ووژلی شو نو تاسو به واوړئ مخ په شا او څوک چې مخ په شا واوړېدل نو هیچېري به وران نه کړي دالله هیڅ څیز او الله به ثواب ورکوي شکرګزارانو ته.

ددې دوو ایاتو له تلاوت وروسته یې هغوی ته وویل: هر څوک چې د خدای عبادت کوي، پوه دې شي چې خدای ژوندی دی او هر څوک چې د محمد عبادت کوي پوه دې شي چې هغه وفات شوی دی.

د ابوبکر صدیق رضی الله عنه د ې خبرو د خلکو حیرانتیا له منځه یوړه، د عقل سترګې یې روښانه کړې، ددې لوی مصیبت حقیقت یې درک کړ او پوه شول چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفات شوی دی.

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په رحلت سره د هغه صلی الله علیه وسلم او ابوهریره څلور کلن یو ځای والی پای ته ورسېد، د هغو مشکلاتو سره سره چې مخکې یې یادونه وشوه هغه څلور کلونه د ابوهریره د ژوند تر ټولو غوره کلونه وو. هغه په دې کلونو کې ډېر اوګټور علم تر لاسه کړی وو او خپل ژوند یې داسې رسول ته وقف کړی وو چې د علم او پوهې غوښتونکی وو.

پیغمبر علیه سلام، ابوهریره د تر ټولو غوره شاګرد او د هغوی د تر ټولو پوه په عنوان له علم سره په علاقه او توجه پېژاند او په هغه یې مهرباني کوله، له هغه سره یې مینه

درلوده او ورته يې دعا کوله. حتى هغه ته يې په خصوصي ډول علوم ورښودل، له دې لارې د ابوهريره په ياد او د علومو په زده کړه کې لوی توفيق په برخه شو چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د رسالت له نښو څخه يوه ښکاره نښه وه.

## د بحرین امیر

د حضرت محمد صلی الله عیله وسلم له رحلت وروسته، صحابه کرام د ارتداد له مسئلې سره چې د عربو د شبه جزیرې په ډېرو سیمو کې یې سر پورته کړ او له هغو عربي قبائلو سره مخ شول چې د زکات له ورکولو یې منع وکړه.
صحابه کرام له مرتدینو سره په جنګ کې ښکېل او په لوی مصیبت واوښتل، زیات شمېر صحابه رضي الله عنهم په همدغو جنګونو کې چې وروسته منځ ته راغلل شهیدان شول. په پایله کې مسلمانان کامیاب، مرتدین مات او خلک یو ځل بیا د اسلام

غېږ ته را وګرځېدل. ابو هریره رضی الله عنه ددې حوادثو شاهد او پکې یې برخه درلوده.

ابو هریره رضی الله عنه له مرتدینو سره په جنګ کې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټینګ او نه بدلېدونکی دریځ ولید او پوه شو چې یو شمېر اصحاب د اسامه د لښکر په لېږلو کي مخالفت کوي، نظر یې دادی چې دا لښکر باید حرکت ونکړي او د زکات له نه ورکوونکو سره ونه جنګیږي. ابوبکر صدیق رضی الله عنه د هغوی په وړاندې ټینګ حالت او نه بدلېدونکی دریځ ونیو.

ابو هریره رضی الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه له او سپنیز عزم، بې سیاله قهرماني، ثبات، یقین او د زړه له اطمینان څخه حیران شو، ځکه ابوبکر صدیق رضی الله عنه داسې خبرې وکړې چې تاریخ په زرینو کرښو کې ځای کړې، هغه وویل: هغه لښکر چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د جنګ لپاره لېږلی دی، زه څنګه کولای شم را وې ګرځوم؟ که داسې جرئت وکړم، په حقیقت کي به مې په خطرناک کار کي لاس وهلی وي! په هغه ذات قسم چې زما روح یې په لاس کي ده، که ټول عربان زما په وړاندې ودرېږي، د هغه لښکر تر راګرځولو راته غوره ده چې د حرکت امر یې رسو ل الله صلی الله علیه وسلم صادر کړی دی. قسم په الله، له هغو کسانو سره چې د لمانځه او زکات تر منځ په فرق باندې قایل شوي دي وجنګیږم، تر څو چې د اوښ هغه پړی چې رسول الله ته یې

ورکاوو، ماته رانکړي، له هغوی سره به مبارزه وکړم، سره له دې چې د وحي راتګ بند شوی او د خدای دین پوره شوی زه څرنګه کولای شم ژوندی واوسم او ووینم چې د الله دین ته تاوان رسېږي!؟ د مرتدینو له ماتي وروسته ټولو اصحابو د ابوبکر صدیق رضی الله عنه په لوړوالي اعتراف وکړ.

ابوهریره د ابوبکر صدیق رضی الله عنه ټینګوالی هیڅکله هیر نه کړ او هغه یې خپلو شاګردانو او نورو خلکو ته وایه.

یوه ورځ چې د ارتداد ورځي یې په زړه شوې، ملګرو ته یې داسي وویل: په الله قسم چې له هغه پرته بل معبود نشته که ابوبکر خلیفه شوی نه وای، نو دین به له مینځه تللی وو او د الله تعالی عبادت به په دې خاوره کي نه کېده. دا قسم یې څو ځله تکرار کړ، ورپسې یې وویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم، اسامه له اووه سوه لښکر سره د شام په لور له رومیانو سره جګړې ته ولېږه، کله چې هغه او لښکر یې ذی خشب ته ورسېدل، حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفات شو، د مدینې د شاوخوا خلک ددې خبرې له اورېدلو وروسته مرتد شول. د پیغمبر علیه سلام اصحاب ابوبکر رضی الله عنه ته ورغلل او ویې ویل: د مدینې د شاوخوا اعراب مرتد شوی دي، د اسامه لښکر را وګرځوه چې له مرتدینو سره وجنګېږي او د روم له سفر نه یې مخ راواړوه.

ابوبکر وویل: په الله قسم چې له هغه پرته بل معبود نشته، هغه لښکر چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د رومیانو په

لور لېږلی دی، را وبه يې نه ګرځوم او هغه ډله چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لاس تړل شوې ده، جدا به يې نه کړم. بيا يې امر وکړ چي د اسامه لښکر دي د روم په لور خپل سفر ته ادامه ورکړي، هيڅ قبيله نه وه مګر دا چي غوښتل يې چي مرتد شي. له دې سره به يې يو بل ته ويل: که دې مسلمانانو قدرت نه درلودای، نه يې شوای کولای چي د روم په لور په دومره عظمت سره لښکر وليږي، موږ صبر کوو چي هغوی له روميانو سره وجنګيږی، بيا د هغوی په وړاندي خپل تصميم نيسو.

د اسامه لښکر د روم په لور لاړ، له هغوی سره يې جنګ وکړ او د هغوی له ماتي او ورک کولو ورسته بېرته خپل هيواد ته روغ رمټ راغی.

د عربو مختلفي قبيلې ددې مېړاني او استقامت په ليدلو سره مجبور شول چي په اسلام ثابت پاتي شي، له هغې جملې څخه چي مرتد شوي وو د بحرين خلک وو، څکه د هغوی صالح پاچا منذر بن ساوی د رسول الله صلی الله عليه وسلم له رحلت لږ مخکي له دې نړی څخه سترګي پټې کړې وې.

المنذر بن النعمان بن المنذر په الغرور ملقب د هغه په ځای کښېناست، د هغه ځای خلک يې ارتداد ته وهڅول، خلک مرتد شول او د خپلي خبري د روغوالی لپاره يې داسي دليل وايه چي که محمد پيغمبر وای نه به وفات کېده.

د جواثی په نوم یو کلیوال ځوان د هغوی له منځ څخه پورته شو او د یوه بل شریف او لوی شخص امجارود بن المعلی په همت چي په اسلام پاته وو خلکو ته په خطاب کي داسي وویل: "اي د عبدالقیس ډلې، زه له تاسو نه سوال کوم که پري پوه واست جواب راته ووایاست او که نه واست وربانديي پوه نو حد اقل چوپ کښېنئ او زما خبري ومنئ."

ورته ویې ویل: پوښتنه وکړه.

هغه وویل: ایا الله تعالی له رسول الله مخکي نور رسولان نه وو رالیږلي ؟

هغوی وویل: هو.

ده ورته وویل: تاسو هغه لیدلي او که یې یوازي له وجود څخه خبر شوي یاست؟

دوی ځواب ورکړ: هغه مونه دي لیدلي، یوازي د هغوی له راتګ څخه خبر شوی یو.

ده ورته وویل: هغه پیغمبران چېرته لاړل؟

دوی وویل : هغه مړه شوي دي.

ده ورته وویل: محمد هم د هغوی په څېر یو پیغمبر وو او اخر وفات شو، زه شاهدي ورکوم چي له الله پرته بل معبود نشته او محمد د الله رسول دی.

دا وخت ټولو خلکو په یوه غږ وویل: موږ هم شاهدي وایو چي له الله پرته بل معبود نشته او محمد د الله رسول دی او اې ځوانه ته زموږ تر ټولو غوره او لوړ شخص یې.

په همدې ترتیب مسلمانان په اسلام ټینګ ودرېدل او د مرتدینو محاصرې یې وزغملې.

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه علاء بن حضرمی د بحرین حاکم وټاکه، هغه ته یې وویل چې د هغه ځای له مرتدینو سره وجنګېږه، ابوهریره رضی الله عنه هم له هغه سره ملګری وو.

علاء د مسلمانانو د سپاره نظام له شپاړس تنو سره له مدینې څخه د بحرین په لور مخه کړه.

په لارکي یې له مسلمانانو وغوښتل چې د هغه سره مرسته وکړي او ورسره یو ځای لاړ شي. یو شمېر یې غږ ته لبیک وو ایه او له هغه سره د بحرین په لور روان شول. علاء بحرین ته له رسېدلو وروسته له مرتدینو سره جنګ وکړ. الله تعالی هغه په مرتدینو باندې کامیاب او لوی موفقیت یې په برخه شو، یو ځل بیا د بحرین خلک د اسلام په غېږ کې ولوېدل. ابوهریره په هغه جنګ کې ډېره مېړانه وښوده، همدارنګه د غیبي مرستو لیدلو یې یقین نور هم پوخ کړ.

علاء متقي او پرهېزګار سړی وو، څرنګه چې ابوهریره لیده چې دعا یې قبلېږي او الله تعالی ورسره مرسته کوي نو ځکه نور هم ورباندې ګران شو.

ابوهریره وایي: موږ له علاء سره یوې وچې او بې کښته ځمکې ته لاړو، هلته مو اوبه ختمې شوې، خپل مشکل مو علاء ته وو ایه، هغه وویل: دوه رکعته لمونځ وکړئ، بیا یې

دعا وکړه. ناڅاپه یوه وریځ راښکاره شوه او باران واورېد. ټولو اوبه وڅښلې او لوښي مو له اوبو څخه ډک کړل، کله چې د سمندر غاړې ته ورسېدو ويې ویل: د الله په نوم سمندر ته داخل شئ. ټول د الله په نامه دریاب ته داخل شول او له هغه څخه تېر شوو، په الله قسم اوبو حتی زموږ د اوښانو پښې خیشتې نه کړې، خلک د مسلمانانو له دې کار څخه حیران شول او هرځای به پرې غږېدل، تر دې چې له دې امله یو مسیحي راهب د مسلمانانو سیمي ته راغی او د اسلام په مبارک دین مشرف شو.

ابوهریره وایي: هغه ته مې وویل، ستا د اسلام راوړلو باعث څه شی شو؟

راهب وویل: دهغو ښانو په خاطر چې و مې لیدي، یقین مي حاصل شو چې حق له تاسو سره دی او وډارېدم چې که له اسلام څخه مخ واړوم، هسې نه الله تعالی مې څېره مسخه کړي، نو ځکه مسلمان شوم.

ابوهریره د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د خلافت په مهال په بحرین کي له علاء سره ژوند کاوو، د خلکو لپاره یې اذان کاوو، هغوی ته یې قران کریم ورزده کاوو، د اسلام احکام یې ورته بیانول. په دغو شپو کې یې ناڅاپه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د وفات خبر تر غوږ شو. دې خبري هغه ته ټکان ورکړ او ډېر ور څخه متاثر شو. ځکه د حضرت ابوبکر صدیق د خلافت زیات وخت نه وو تېر شوی او

په داسي حال کي چي د اسلام پايو ته يې چي د مرتدينو د قيام په اثر يوه اندازه لړزېدلې وې، استحکام ورکړ، ددې فاني دنيا څخه لاړ او د خلافت امانت يې د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په غاړه واچاوو.

حضرت عمر رضی الله عنه د مسلمانانو دغوره خليفه لپاره بهترين ځای ناستی وو.

ابو هريره د حضرت عمر له خلافت څخه زيات خوښ شو، ځکه هغه يې له حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه وروسته د خلافت لپاره تر ټولو غوره باله، نو يې په دې اړه د بحرين خلکو ته وويل: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه واورېدل چي ويل يې: ابوبکر ښه سړی دی، عمر ښه سړی دی.

همدارنګه له هغه مي واورېدل چي ويې ويل: الله تعالی د عمر په ژبه او زړه باندي حق جاري کړی دی.

څه وخت نه وو تېر شوی چي د حضرت عمر رضی الله عنه ليک علاء بن حضرمی ته ورسېد، په هغه ليک کي علاء ته امر شوی وو چي بصرې ته لاړ شي، د هغه ځای حاکميت په غاړه واخلي، په ليک کي ليکل شوي وو چي د عتبه بن غزوان کار مي تاته وسپاره او پوه شه چي ته د مهاجرينو په هغو خلکو مقدم کېږې چي د الله تعالی لطف د هغوی په حال تر ټولو مخکي شوی دی. هغه مي په دې خاطر نه دی ايسته کړی چي وړ سړی نه وو بلکي ګمان مي وکړ چي ستا وړتيا تر

هغه زياته ده. نو د هغه حق وپيژنه او احترام ورته ولره. له تا مخکې مې دا مسؤليت د بل چا په غاړه واچاوه، خو متاسفانه مخکې له دې چې بصرې ته لاړ شي، له دې دنيا نه يې رحلت وکړ. که الله تعالی وغواړي چې ته دا مسؤليت په غاړه واخلې او عتبه همداسې پاته شي نو هر څه چې خدای تعالی وغواړي عملي به شي. په هرحال کې حکم د الله تعالی له لوري دی، د هر څه چې الله اراده وکړي کيږي.

علاء د بصرې په لور حرکت وکړ، ابوهريره او نور ملګري چې له مدينې ورسره ملګري وو، له ځان سره يې ملګري کړل، خو د الله تعالی رضا داسې وه چې هغه هم د لارې په منځ کې رحلت وکړ، ملګري يې له دې پيښې سخت غمګين شول.

ابوهريره وايي: موږ په داسې ځای کې وو چې هلته اوبه نه وې. الله تعالی وريځ راوسته او باران وورېد. موږ د علاء جنازې ته د باران په اوبو غسل ورکړ او هغه مو په داسې قبر کې چې په خپلو تورو مو کښلی او د لحد د رلودونکي وو خښ کړ او خپلې لارته مو ادامه ورکړه.

دومره لار مو لا نه وه وهلې چې د هغې سيمې له يوه کس سره مخ شوو او کيسه مو ورته وکړه، هغه وويل: دا ځمکه مړي بېرته راباسي، ښه داده چې د علاء جسد راوباسئ او څو ميله ليرې يې خښ کړئ، تر څو د درندګانو له خطر او د هغه د له منځه وړلو مخه ونيول شي.

په اتفاق سره ددې کار د سرته رسولو لپاره هغه ځای ته وګرځېدو خو هغه ځای ته له رسيدلو وروسته مو په حيرانوونکې ډول د هغه جنازه هملته پيدا نکړه. يوازې هلته مو يو نور وليد چې ځلېده، نو ځکه مو دوباره د هغه په قبر خاوره واچوله او يقين مو وکړ چې د هغه جنازه الله تعالی ساتلې ده.

د بصرې سفر د ابوهريره رضی الله عنه لپاره د علاء په نشتوالي کې ډېر ګران وو. بېرته بحرين ته لاړ او په خپل پخواني کار ولګېد. له هغه وروسته عمر رضی الله عنه ورته ليک وليکه او له ابوهريره يې وغوښتل چې د هغه ځای د خلکو امامت په غاړه واخلي او د هغوی په اختلافاتو کې منځګړيتوب وکړي. د بحرين نوی امير قدامه بن مظعون نومېده، چې د حضرت عمر له لوري د هغه ځای د خلکو لپاره غوره شوی وو. په هغه باندې ابوهريره ګران وو، په کارونو کې يې ورسره مشوره کوله او د هغه له علم، پوهې او پرهيزګارۍ يې ګټه اخيسته. خو ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ښار مينه درلوده. ځرنګه چې ډېر وخت ترې لرې شوی وو، نو ځکه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مبارکې حجرې مخ ته د درېدلو ليوال وو. همدارنګه د خپلې مور د ليدلو هيله يې هم درلوده چې په مدينه کې يې يوازې پرې ايښې وه. له دې امله يې د بحرين له

امیر څخه اجازه وغوښته، د مدینې په لور لاړ څو خپلې هیلې ته ورسیږي او خپله اړتیا پوره کړي.

د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په وړاندي ودرېد او د بحرین د وضعیت حال یې ورکړ، د خپل راتګ موخه یې ورته وویله، له هغه یې وغوښتل چي ده ته په مدینه کي د پاتې کېدلو اجازه ورکړي او بېرته بحرین ته لاړ نه شي. عمر فاروق رضی الله عنه ومنله او اجازه یې ورکړه چي په مدینه کي پاتې شي.

ابوهریره ډېر خوښ وو چي یو ځل یې بیا د رسول الله په ښار کي د اوسېدلو چانس لاس ته ورځي. ځکه هغه له یمن څخه دې مقدس ښار ته هجرت کړی وو څو په دې ښکلي او پاک ښار کي ژوند وکړي. له هغه وروسته چي به له مدینې لري کېده پرېشانه کېده به او د ویري احساس به یې کاوو، ځکه هغه خپله خوشحالي یوازي په مدینه کي پیدا کړې وه. ابوهریره رضی الله عنه په صفه کي خپل پخوانی ځای پرېښود او د اوسېدلو لپاره یې نوې ځای غوره کړ، ځکه هلته صفه اوس نه وه او اهل صفه چي زړونه یې په رسول الله صلی الله علیه وسلم راټول وو، سره وشیندل شول، په بېلابېلو ښارونو کي تیت، په جهاد او د اسلام د مبارک دین په خپرولو بوخت وو.

د ابوهریره رضی الله عنه لپاره د صفې د ښکلو او غم لرونکو خاطراتو پرته بل څه پاتې نه وو. یوازیني څیز چي دی

يـې خوشـحاله سـاتلې وو درسـول الله صـلی الله عليـه وسـلم مبارکه روضه وه، چې هره ورځ بـه يې سترګې پرې لګېدې. هغه ټول لمونځونه د امير المؤمنين عمر بن الخطاب تر شا کول او هيڅ لمونځ يې له لاسه نه ورکاوو. همېشه به د هغه په مجلس کې ليدل کېده، خبرو ته به يې غوږ نيو او مشورې به يـې ورکـولې. حضـرت عمـر رضـی الله عنـه هـم د حضـرت ابوهريره د زياتې پوهې او علم له امله ورته احترام درلود.

د حضرت عمر فاروق د خلافت په مهال ډېر ځايونه فتح او د اسلام تر بيرغ لاندې ځمکه ډېره پراخه شوه، هره ورځ د هغو کسانو شمېر زياتېده چې په اسلام به مشرف کېدل. نو ځکه عمر رضی الله عنه امانتدارو حاکمانو او پوهانو تـه ضرورت درلـود، چې وکولای شي مختلفي سيمي اداره کړي. د دې مـوخې لپـاره يـې چې پـه کومـو خلکـو بـاور درلـود، راويـې غوښتل او ورته ويې ويل: زه له تاسو هيله لرم چې د اسلامي قلمرو پـه اداره کولـو کې راسره مرسته وکړئ او کـه تاسو لـه ماسره مرسته نه کوئ، نو څوک به له ماسره مرسته وکړي.

هغـوی د اميـر المـؤمنين پـه ځـواب کـي وويـل: مـوږ سـتا فرمانبرداريو. تر ټولو وړاندې عمر رضی الله عنه ابوهريره ته متوجه شو او ورته ويې ويل: اې ابوهريره تـه بحرين تـه لاړ شه او سرکال مهاجر واوسه.

بيا يې نورو ته مخ واړاوو او د يوه ښار لپاره يې غوره کړل، هغوی ته يې خپل امر وواېه او نصيحت يې ورته وکړ. امر يـې

ورته وکړ چي څومره ژر کېږي تعين شويو ځايونو ته ځان ورسوي او د مسلمانانو امور په خپل لاس کي واخلي.

ابوهريره په غاړه وراچول شوي مسؤليت نارام کړ ځکه هغه غوښتل چي په مدينه کي پاته شي او پاتي علم د رسول اکرم صلی الله عليه وسلم له صحابه وو زده کړي، بيا ځان له نورو ټولو قيدونو خلاص او يوازي د خلکو په تعليم کي مشغول شي. غوښتل يې چي حضرت عمر رضی الله عنه ته ووايي څو دا مسؤليت يې له غاړي واړوي، خو ډاريده هسي نه دا کار د هغه د ځوريدلو سبب شي.

سره له دې چي له دې پيشنهاد څخه خوښ نه وو خو بې دې يې کومه چاره نه درلوده، ځکه چي له پيغمبر عليه سلام سره يې بيعت کړی وو چي په اساني او سختي کي به د هغه څه اطاعت کوي چي وايي ورې. له دې امله يو ځل بيا بحرين ته لاړ او د هغه ځای د خلکو د په زړه پوري ښه راغلاست سره مخ شو. ځکه د بحرين خلکو هغه وړاندي لا پيژاند، د هغه د نيکي رويې، زياتي پوهي او علم له امله ورباندي ګران وو. ابوهريره د هغه ځای د امير په صفت هلته ژوند کاوو او د هغه ځای سرحدات يې د دښمنانو له لاس وهني وساتل.

په لمانځه کي امام وو، د هغوی په اختلافاتو کي يې منځګړيتوب کاوو، اسلام يې ور زده کاوو او په نيکه رويه کولو يې د خلکو په زړونو کي ځای ونيو. همېشه به له عمر رضی الله عنه سره په اړيکه کي وو، له هغه به يې په هغو

امورو کي پوښتنه کوله چي ده به فتوا پکي ورکوله، څو په دې اړه د هغه په رايه او نظر وپوهېږي.

ځکه ډاربېده چي هسي نه خلک د دې صحنې په ليدلو د خپلو حاکمانو بي احترامي وکړي.

له يو څه وخت وروسته حضرت عمر ته خبر ورسېد چي ابوهريره د ډېري شتمني څښتن شوى دى. عمر رضى الله عنه هغه ته پيغام واستاوو او ځان ته يې وروغوښت.

ابوهريره مدينې ته راغى په داسي حال کي چي شل زره درهم يې له ځان سره درلودل، عمر رضى الله عنه ورته وويل: په چا دي ظلم کړى دى؟ ابوهريره وويل: نه. عمر رضى الله عنه وويل: څومره پيسې دي له ځان سره راوړې دي؟ ويې ويل: شل زره درهم. عمر رضى الله عنه وويل: دا پيسې دي له کومې لاري لاس ته راوړې؟ هغه وويل: تجارت مي وکړ. عمر رضى الله عنه وويل: خپله لومړنۍ سرمايه له هغوى څخه در واخله او پاته پيسې بيت المال ته وسپاره.

ابوهريره د امير المؤمنين له دې امر څخه ډېر غمګين شو، ځکه هغه پيسې يې له مشروع لاري او په ډېر تکليف سره لاس ته راوړې وې، نو ځکه يې له عمر رضى الله عنه سره بحث وکړ، عمر رضى الله عنه ته قهر ورغى او بيا يې ورته وويل: دا مال دي له کومه لاس ته راوړى دى؟

ابوهريره وويل: هلته چي لاړم، اس مي واخيست، هغه مي وساته، الله تعالى رحم راباندي وکړ، هغه يو په بل پسي نور

وزېږول او ما دهغوی له خرڅ څخه دا پیسې په لاس راوړې دي.

دې ځواب عمر رضی الله عنه قانع نه کړ، سرمایه یې ترې جدا کړه او پاته پیسې یې بیت المال ته وسپارلې.

ابوهریره پرېشانه خپلې مور ته ورغی او هغه یې له هغه څه څخه خبره کړه چې وربانديې تېر شوي وو. مور یې وویل: خدای تعالی دي عمر رضی الله عنه وبښي. دې خبري ابوهریره حیران کړ. د هغې ورځي د سهار د لمانځه ورسته یې عمر رضی الله عنه ته دا سي دعا وکړه: یا الله!! امیر الؤمنین وبښه. څرنګه چې ابوهریره ولیدل چې عمر رضی الله عنه له خپلو ټولو حاکمانو سره همدا سي رویه کوي، یو ازي دی نه دی چې پیسې یې ترې واخستې او بیت المال ته یې ورکړې. ځان یې دلاسا کاوو. دا د عمر رضی الله تعالی عنه سیاست وو چې د احتیاط په پوړونو یې ځای درلود او د امیرانو مالونه به یې له دې وېري له هغوی څخه اخیستل چې هسې نه د حرمت شک پکې موجود وي او هغوی ته به یې غوره ځیز ورکاوو چې د هغوی د تسکین سبب شي.

ابوهریره رضی الله عنه له دې څخه د خوښې احساس کاوو چې مدینې ته راغلی دی او تصمیم یې ونیو چې په مدینه کي پاتي او په پوره ډول په تعلیم او تعلم مصروف شي، خو له یو څه وخت ورسته بیا حضرت عمر رضی الله تعالی عنه

همکاري ته وباله. ابو هریره حیران شو او په مختلفو بهانو یې ځان د مسؤلیت څخه خلاصاوو.

امیـر المـؤمنین هـم مجبور شـو او د هغـه عـذر یـې ومانـه. ابو هریره وایي: له هغه وروسته عمر رضی الله عنه راته څو ځله وویل چي زما سره همکاري نه کوې؟ ما ورته وویل چي نه.

هغه راته وویل: له تا څخه غوره شخص وو، مسؤلیت یې منلی او کار یې کړی دی، هغه حضرت یوسف علیه سلام وو.

ورتـه و مـې ویـل: یوسف علیـه سـلام پیغمبـر او د پیغمبـر زوی وو. خو زه د عادي مېرمني زوی یم او لـه څو شیانو څخه په وېره کي یم، یعني ډارېږم چي هسي نه په ناپوهي کي څه ووایـم، بې صـبره حکـم وکـړم او ډارېـږم چـي پـه شـامي بـار کېښنښودل شي او په ښکنځلو مي عزت له مینځه لاړ شي او مال مي له لاسه ووزي.

ابو هریره رضی الله عنه په دې ماهرانه عذرونو په ښارونو کي له کار کولو څخه ځان وژغوره، له ټولو شیانو یې لاس واخیست، څو د مسلمانانو معلم شي.

# ښوونکی صحابي

ابـوهريره د پيغمبـر اکـرم صـلی الله عليـه وسـلم لـه رحلـت وروسته، نژدې پنځوس کاله ژوند وکړ. په دې موده کې يې کار يوازې د خلکو تعليم او په ديني مسائلو د هغوی خبرول ؤ.

هغه حديثونه چې په خپله يې له رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي وو يا يې د هغه د حيات په مهال له صحابه کرامو رضی الله عنهم څخه اورېدلي وو او يا هم د هغه مبارک د وفات وروسته يې له صحابه وو څخه زده کړي وو، خلکو ته به يې ور زده کول، بل هيڅ کار ته يې تر دې کار ترجيح نه ورکوله او په رښتيا چې هغه ښوونکی صحابي وو. پـه حقيقـت کـې هغـه د مسـلمانانو دوو نسـلونو يعنـي صحابه وو او تـابعينو تـه علـم وروښـود. د لـومړۍ پېړۍ د دوهمـې نيمـايي اسـلام امامـان د هغـه شـاګردان وو، پـه دې

سربېره په زرهاوو عامو خلکو ورڅخه نبوي حديثونه زده کړل. ابوهريره رضی الله عنه له راشده خلفاوو نه زيات د حضرت معاويه هم مهاله وو، زياتو اسلامي ښارونو ته يې سفرونه وکړل، مهم اسلامي مرکزونه يې وليدل خو اصلي مېنه يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم ښار يعني مدينه وه. مدينه هغه ښار وو چې ابوهريره رضی الله عنه ډېر خوښاوو او له هجرت وروسته تر څو چې له دې نړۍ څخه يې رحلت کاوو، دخپل عمر زياته برخه يې په همدې ښار کې تېره کړه.

د حضرت عمر رضی الله عنه په وخت کې چې په مدينه کې مېشت شو، ډېر وخت به يې خلکو ته حديثونه بيانول، له هرې موقع به يې استفاده کوله او ويل به يې: له رسول الله صلی الله عليه وسلم نه مې واورېدل چې ويل يې؛ يا رسول الله وفرمايل او يا يې داسې حديث يې ماته ووايه.

حضرت عمر رضی الله عنه چې به ليدل ابوهريره رضی الله عنه په دې کار عادت شوی او ډېر وخت خلکو ته حديثونه وايي، ورته ويې ويل: لږ حديثونه نقل کوه. خو ابوهريره رضی الله عنه نه شوای کولای چې غلی کښېني، ځکه هغه فکر کاوو، هغه پوهه چې يې زده کړې ده، يو امانت دی چې خلکو ته يې رسول واجب دي، باور يې درلود چې هر څوک له ديني امورو څخه څه زده کړه ولري په هغه فرض دی چې هغه نورو ته وښيي. نوځکه څنګه چې يې عادت وو همداسې يې د حديثونو د ويلو لړۍ جاري وساتله، عمر رضی الله عنه څو

ځله له دې کار څخه رامنع کړ خو هغه توجه نه ورته کوله. اخر عمر رضی الله عنه قهرجن شو او هغه یې سخت ملامت کړ او ویې ویل: که د حدیثونو روایت کول پرېنږدې، خپل ځای (دوس) ته به دې واستوم.

له هغې نېټې ورسته ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم کم حدیثونه بیانول. یو څه وخت په دې حال تېر شو، البته عمر رضی الله عنه غوښتل چې ابوهريره وپوهوی چې که محدث په اشتباه، دروغو او یا قصد سره حدیث رسول الله صلی الله علیه وسلم ته منسوب کړي، په اخرت کې به یې پایله خرابه وي او هسې نه هغه (ابوهريره رضی الله عنه) ګناهکار او په اخرت کې د سزا وړ وګرځي، هغه یې د زیاتو حدیثونو له روایت کولو څخه منع کاوو، نو ځکه یې ابوهريره خپل ځان ته وباله او ورته ویې ویل: اې ابوهريره رضی الله عنه! هغه ورځ چې زه له رسول الله صلی الله علیه سلم سره د پلانې په کور کې وم، ته هلته وې؟ ابوهريره رضی الله عنه وویل: "هو او پوهېږم چې ولې له مانه په دې اړه پوښته کوې."

رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه ورځ وفرمایل: هر څوک چې قصداً دروا غ ماته منسوب کړي، خپل د استوګنې ځای یې د دوږخ په اور کې تیار کړ."

حضرت عمر رضی الله عنه د دې جملې له اورېدلو تعجب وکړ او حیران شو، د ابوهريره رضی الله عنه په قوي حافظه او

ديني ساتنه يې باور راغی او هغه ته يې وويل: اوس لاړ شه او حديث بيان کړه.

څرنګه چې عمر رضی الله عنه په مختلفو مناسبتونو کې ليدل چې ابوهريره له نورو څخه په ښه ډول احاديث ياد کړي دي نو اعتبار به يې ورباندې زياتېده.

يو ورځ حسان بن ثابت په مسجد کې شعر وايه، عمر رضی الله عنه د هغه له څنګه تېر او په قهر جن ډول يې ورته وکتل. حسان وويل: ما مخکې هم د رسول الله صلی الله عليه وسلم په وړاندې شعر زمزمه کړی دی. خو رسول الله صلی الله عليه وسلم له ما سره داسې رويه نه ده کړې؟ بيا يې مخ ابوهريره رضی الله عنه ته کړ او ويې ويل: تا ته دې په خدای قسم وي چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه دې نه وا اورېدل چې ويې ويل: زما له لوري جواب ورکړه او يا الهي د هغه مرسته په روح القدس سره وکړه.

ابوهريره رضی الله عنه وويل: هو.

د ابوهريره رضی الله عنه د شهادت د اورېدلو وروسته، عمر رضی الله عنه د هغه د قبلولو پرته بله لار نه درلوده.

يو ورځ يوه مېرمن چې خالونه يې وهل د حضرت عمر رضی الله عنه حضور ته راوستل شوه. عمر رضی الله عنه پورته او ويې ويل: تاسو ته دې په خدای قسم وي، له تاسو نه چا د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم څخه د خال وهلو په اړه کومه خبره اورېدلې ده؟

تهول غلي شول. ابوهريره رضی الله عنه ولاړ شو او ويې ويل: اې اميرالمؤمنين! ما له رسول الله څخه واورېدل چې ويې ويل: مه خالونه وهئ او مه چاته اجازه ورکوئ چې ستا سو پر بدن خالونه ووهي.

يوه بله حادثه کې چې حضرت عمر رضی الله عنه له نورو اصحابو سره يو ځای د عمرې د ادا کولو لپاره د مکې په لور روان وو. په لار کې تېز باد شروع شو. عمر رضی الله عنه خپلو ځنګلورو ته وويل: له تاسو څخه کوم يوه له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه د باد په باره کې حديث اورېدلی دی؟ چا جواب ورنکړ. ابوهريره رضی الله عنه خبر شو چې حضرت عمر رضی الله عنه دا ډول سوال کړی دی، د خپلې سورلې چټکتيا يې زياته کړه چې کله حضرت عمر رضی الله عنه ته ورسېد ويې ويل: "اې امير المؤمنين وامې وريدل چې د باد په اړه مو حديث غوښتی دی. ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چې ويې فرمايل: باد او نسيم الهی امر دی، کله د رحمت او کله د عذاب په صورت چلېږي. کله چې باد چلېږي ښکنځل مه ورته کوئ، بلکې له الله تعالی نه يې خير وغواړئ او د هغه له شر څخه په الله پناه وغواړئ."

له تعلم سره د ابوهريره مينه تر تعليم کولو کمه نه وه. هغه همېشه له خلفای راشدينو او نورو لويو اصحابو سره کېناست، په هغو احاديثو چې نه پوهېده له هغوی يې اورېدل، هغه يې زده کول، حتی له کوچنی صحابی لکه

اسامه بن زید او عایشې رضی الله عنها نه یې هم علم زده کاوو. هغه قران کریم چې یې د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په ژوند کې نه وو یاد کړی، له نورو اصحابو په ځانګړي ډول له لوی عالم ابی بن کعب څخه یې تر لاسه کاوو او د قران کریم هغه برخه چې یې یاده وه هغه ته تېرولـه او د هغوی صحیح قرائت یې له هغه څخه زده کاوو. له هغه وروسته به یې خپلو شاګردانو ته دوباره وایه.

متاسفانه هغه مهال، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د محراب لمړني شهید له دې فاني نړۍ سره خدای پاماني وکړه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په روضه مبارکه کې د هغه مبارک د مرقد تر څنګ خاورو ته وسپارل شو.

ابوهریره رضی الله عنه دې پېښې سخت نارامه کړ. لیدلي یې وو چې حضرت عمر رضی الله عنه د مسلمانانو او اسلام خیر غوښتونکی وو، شپه او ورځ یې د دین د اقتدار او عزت او د مسلمانانو د خدمت لپاره هڅه کوله.

له عمر رضی الله عنه وروسته مسلمانانو له عثمان رضی الله عنه سره بیعت وکړ او د خلافت درونده مسؤلیت یې د هغه په غاړه واچاوو.

د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په مهال اسلامي قلمرو زیات شو، خلکو د هغه د خلافت په سیوري کې په ارام او ډاډ سره ژوند کاوو.

ابوهريره رضی الله عنه چي د حديثونو د بيانولو په اړه کوم مشکل د حضرت عمر رضی الله عنه په وخت کي درلود، د نوي خليفه په دوره کي يې نه احساساوو.

عثمان رضی الله عنه وليدل چي د مسلمانانو په مېنځ کي نوی نسل غوړېدلی، نوي امتونه مسلمان شوي، داخلک داسي عقل ته ضرورت لري چي وکولای شي د دين احکام ورته وښيي او د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم مبارک احاديث ورته ورسوي.

عثمان رضی الله عنه په احاديثو باندي د ابوهريره رضی الله عنه له پوره تسلط او د هغه له قوي حافظې څخه خبر وو. نو ځکه يې هغه ته زمينه برابره کړه او هغه ته يې فرصت ورکړ چي په خپل زړه د حديثونو په روايت کولو شروع وکړي.

ابوهريره رضی الله عنه چي د داسي موقع په انتظار کي وو، ولاړ شو او خلکو ته يې زيات احاديث بيانول شروع کړل، د پيغمبر صلی الله عليه وسلم سنتونه چي يې څنګه ليدلي او اورېدلي وو په هماغه ډول يې خلکو ته بيانول، هغه ښوونکې پېښې چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په وخت کي تر سره شوې وې داسي به يې خلکو ته وړاندي کولې ته وا اوس هغه صحنه د دوی په وړاندي ده او دی د هغې په ليدلو سره خلکو ته خبري کوي، هغه خلکو ته قران کريم وايه او د تفسير په اړه چي به يې کوم روايت اورېدلی وو دوی ته به يې بياناوو.

کله به خلکو له هغه څخه مسئله پوښتله او يا به يې کومه فتوا ورڅخه غوښته هغه به هم د اساس، شناخت او لازمي پوهې په اساس ورته ورکوله، خلکو به دده فتوا وي حضرت عثمان رضی الله عنه ته رسولې هغه به هم تائيد ولې. په دې کار کې يو شمېر کمو اصحابو له ده سره ګډون درلود، خو د ده په څېر فعال نه وو.

ابوهريره رضی الله عنه خپلې لار ته ادامه ورکړه او د دې کار لپاره به زياتره وخت په جومات کې ناست وو، تر څو چې ژوندی وو ټولو عامو خلکو له لويو رانيولې تر کوچنيو، اشنا، نا اشنا او غريبو پوري به يې ورته حديثونه بيانول. همدارنګه په مسجد، بازار، کښت، سفر او حضر کې به يې خلکو ته احاديث بيانول او هغوی به يې د علم او پوهې لاس ته راوړلو ته تشويقول. په خپلو ځانګړو ګړنلارو به يې خلک د علم او پوهې د ترلاسه کولو لپاره هڅول.

وايې يوه ورځ چې د مدينې بازار ته لاړ، په مرکز کې يې ودرېد او خلکو ته يې په خطاب کې وويل: ای بازار والاوو! په تاسو څه شوي چې دلته مو اړولي دي، په داسي حال کې چې د پيغمبر صلی الله عليه وسلم ميراث په مسجد کې وېشل کېږي، نه غواړئ چې هلته لاړ شئ او خپله برخه واخلئ؟ هغوی وويل: ولي نه. ده ورته وويل: نو ولي انتظار کوئ. هغوی وارخطا د مسجد په لور لاړل، ابوهريره رضی الله عنه همالته انتظار کاوو تر څو هغوی بېرته راغلل. بيا يې

هغوی ته وويل: څه خبره وه خپله برخه مو وا خسته؟ هغوی وويل: نه. موږ جومات ته لاړو خو څه شي وجود نه درلود، چي تقسيم يې کړي. ابوهريره رضی الله عنه وويل: په جومات کي مو څوک ونه ليدل؟ هغوی وويل: هو، يوه ډله مو وليده چي لمونځ يې کاوو، ځينو قران تلاوت کاوو، ځينو د حلال او حرام په اړه سره خبري کولې.

ابوهريره وويل: افسوس پر تاسو، هغه څه چي موليدلي د پيغمبر صلی الله عليه وسلم ميراث او پاته شوني دي.

ابوهريره رضی الله عنه د حديثونو ديانولو ترڅنګ په نيکيو امر او له بديو څخه منع هم کوله. وايي يوه ورځ يو کس د هغه تر څنګ تېر شو، خلکو ابوهريره رضی الله عنه ته وويل: دا کس تر ټولو ډېره شتمني لري. ابوهريره رضی الله عنه هغه ته غږ وروکړ او ويې ويل: ايا رښتيا وايي چي ته تر ټولو شتمن يې؟ هغه وويل: هو، زه سل اوښان، سل اسان او همدومره پسونه لرم. ابوهريره وويل: د اوښ او پسه له ساتلو ځان وساته. ځکه ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويې فرمايل: "هر څوک چي پسه يا اوښ ولري او په سختي او اساني کي يې حق ادا نکړي، د قيامت په ورځ هغه پسه يا اوښ په چاغ بدن راځي او اوښ خپل څښتن په لغته او پسه يې په ښکرانو وهي. همدرانګه په ترتيب سره راځي اوځي،يعني وروستي حيوان چي له هغه سره د حساب برابر والی کوي، د دوهم ځل لپاره اول راځي او هغه د خپلو

پښــو يــا ښــكرانو د وهلـو لانـدي نيسـي، پـه هغـه ورځ چـي د پنځـوس زره كالـه پـه انـدازه اوږده ده، دا حالـت بـه همداسـي جريـان لـري، تـر څـو چـي د ټولـو خلكـو حسـاب او كتـاب ختـم شـي، بيا د هغـه حسـاب تـه رسيدګي او تكليـف يـې روښـانه كوي.

همدارنګه د هغه چا حال هم همداسي دی چي غـوا او پسـه ولـري او پـه سـختي او اسـاني كـي يـې حـق ادا نكـړي، هغـه غـواوي هم د حشر پـه ميدان كي حاضريږي او پـه پـوره سمبال شوي حالت خپل ښتن په لغتو او ښكرانو وهي، هر يوه چي تېره شي، بله راځي، دا دوره همداسي ادامه پيدا كوي پـه هغـه ورځ چي اوږدوالـی يـې پنځـوس زره كلونـه دی، تـر دې چـي د خلكو پـه مېنځ كـي قضاوت وشي بيا د هغـه كس لار هغـه تـه ښودل كيږي."

خلك له هر لوري هغه ته راتلل او شاګردان يې زياتېدل. د انقلاب دوهم نسل چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زيـارت مشـرف شـوی نـه وو، د هغـه مبـارك صـلى الله عليـه وسـلم دې هوښـيار اوپـوه شـاګرد او پـوه معلـم تـه راتلـل او د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم د حديثونو پـه اورېدلو يې ځان ته ډاډ وركاوو.

د مسـلمانانو دريـم خليفـه د ابـوهريره رضـی الله عنـه حـق اداكړ، څرنګه چي د هغه لـه كـار نـه راضـي وو احتـرام يـې ورتـه درلود او زيات بخښښونه يې وركول. پـه دې سره د ابوهريره

رضی الله عنه حالت تغير وكړ، له خواري او تنګلاسي يې حال په شتمني او غنا بدل شو او الله تعالی په يوه بل نعمت يعني واده كولو ونازاوو. ښځه يې هماغه بسره د غزوان لور وه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په وخت كې يې كار ورسره كاوو. هو د غزوان لور د ابوهريره رضی الله عنه ښځه شوه او دهغه سره يې واده وكړ. ابوهريره رضی الله عنه له دې كار نه سخت خوشحال شو او د خوښي احساس يې وكړ، د دې په بدل كې چې الله تعالی يې وضعيت ته تغير وركړی وو، د الله تعالی د نعمتونو شكر به يې په ذكر، عبادت او دهغه په داسي ستايلو چې څنګه ورسره وړ وو، په ځای كاوو.

يوه ورځ له خپلو برجسته شاګردانو څخه ورته محمد بن سيرين راغی، ابوهريره رضی الله عنه په داسي حال كي چې له هغه سره خبري كولې له جيب څخه يوه كتاني ټوټه راوكښه تر څو د خپلي پوزي او به پرې پاكي كړي. ابن سيرين د دې صحنې له ليدلو حيران شو او ويي ويل: اوس په كتاني ټوټه د خپلي پوزي او به پاكوې !؟ ابوهريره رضی الله عنه يې په ځواب كې وويل: اې ابن سيرينه ! قسم په الله زه د رسول صلی الله عليه وسلم د منبر او حضرت عايشې رضی الله عنها د حجرې تر مېنځ د لوږي له امله لټ په لټ اوښتم، څوك چې زما په حال نه پوهېدل يوه او بل ته يې ويل: هغه لېونی دی. په داسي حال كي چې ما له لوږي پرته بل مرض نه درلود. بيا يې

خپلو اغوستو جامو ته اشاره وکړه او ويې ويل: نه پوهېږې څه مې اغوستي دي؟ بيا يې دالله تعالی ډېر شکر ادا کړ.

ابوهريره رضی الله عنه د خلفای راشدينو په ځانکړي ډول د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په مهال خورا ارام او اسوده ژوند کاوو، په پوره معنی نورو ته په تعليم ورکولو مشغول وو.

دا مشهوره خبره د هغه ده: دعلم يو فصل چې ياد کړم، زما لپاره تر زر رکعته نفلي لمونځ غوره ده او يو فصل علم چې نورو ته وښيم، که په هغه عمل وکړم يا نه، له سل رکعته نفلي لمانځه راته غوره ده. همدارنګه ويل يې: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چې ويل يې: "کله چې د طالب العلم مرګ راورسيږي او هغه د علم او پوهې په حاصلولو مشغول وي، د شهادت په مرګ به مړ شي."

د حضرت عثمان رضی الله عنه له شهادت وروسته مسلمانانو له علي بن ابي طالب رضی الله عنه سره بيعت وکړ او هغه يې د مسلمانانو د خليفه په حيث وټاکه، ابوهريره رضی الله عنه هم ورسره بيعت وکړ. علی رضی الله عنه د هغو درزونو د له منځه وړلو لپاره راولاړ شو چې د مسلمانانو په منځ کې پيدا شوی وو. خو فتنه لويه او په ډېرو ښارونو کې يې د مسلمانانو توجه ځان ته جلب کړې وه، اخر د هغوی په منځ کې ويني تويول او جنګ منځ ته راغی، کولای شو ووايو چې د جمل او صفين جنګونه دد ې فتنې نتيجه وه.

پورتنيو پيښو ابوهريره رضی الله عنه ځای ناستی کړ، په هيڅ پيښه کي يې برخه وانه خيسته، ځکه هغه حديث چي يې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلی وو ، هغه يې له دې کار څخه راګرځاوو.

انحضرت صلی الله عليه وسلم فرمايلي وو : "راتلونکي کي به فتنې ښکاره شي ، هغه مهال په ځای کېناستونکی له هغو نه غوره دی چي د هغوی په لورحرکت کوي او هغه کس چي دهغو فتنو په لور په ارامي سره روان وي له هغه غوره دی چي تېز ور روان وي او هر څوک چي د هغوی په لور غاړه کېږه کړي، هغه به ځان ته ورجذب کړي پس هغه مهال کي چا پناه پيدا کړه بايد هغې پنا ته لاړ شي."

دا حديث په هغه وخت کي د ابو هريره رضی الله عنه د کار دستور وو ، نو ځکه يې په کور کې کېناستلو ته ترجيح ورکړه ، ځان يې په هغو فتنو کي شريک نه کړ او له مدينې څخه د باندي نه ولاړ.

يو شمېر نور لوی اصحاب لکه سعد بن ابی وقاص ، ابن عمر، عمران بن حصين او ابی بکر الثقفي رضی الله عنهم له هغه سره هم عقيده وو .

له دې وروسته د حضرت علی رضی الله عنه زوی حسن خلافت ته ورسيد ، په دې کال (څلوېښتم هجري) يې د جماعت د کال نوم کېښود . ابوهريره رضی الله عنه دې جريان ته له ورننوتلو هم ځان وساته، خپل پخوانی کار يې له سره

شروع کړ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ښار کې یې د حدیث او فقهې په خپرولو شروع وکړه، سره له دې چې سن یې ډېر لوړ شوی وو، د مسلمانانو په مېنځ کې د ځلېدونکې ستورې په څېر ځلېده او علم یې په ښارونو کې خپرېده، ورځ په ورځ یې شاګردان زیاتېدل، څرنګه چې پوه شو د حدیثونو بیانول د خلکو څخه د فتنې د مهال پیښې له یاده باسي دا کار یې دوه چنده کړ، هره اونۍ به د جمعې د خطیب نه مخکې د منبر تر څنګ درېده او حدیث به یې بیانول، دا کار به یې هره اونۍ کاوو او خلکو به نوې احادیث ترې اورېدل، د هغه له قوې حافظې او ښکلې لهجې څخه حیران وو او ګمان یې کاوو چې هغه یې د کتاب له مخې وایي.

ابوهریره رضی الله عنه د صحابه وو په مېنځ کې د حدیثونو د لومړي حافظ په نوم وځلېد، خلکو به له یوه او بل سره ویل چې ابوهریره رضی الله عنه دومره احادیث له کومه کړل په داسې حال کې چې هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره تر څلور کاله زیات وخت تېر نه کړ او هغه کسان چې ډېر کلونه له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو دومره حدیثونه یې نه دي یاد؟

ابوهریره رضی الله عنه دې ټولو زمزمو ته متوجه شو، نو ځکه له هغه وروسته به د هغه د بیان په شروع کې هغوی شاهدې ورکوله چې ابوهریره رضی الله عنه ډېر وخت له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وو او له رسول الله صلی

الله علیه وسلم څخه یې داسي خبري اورېدلې چي دوی نه دي اورېدلې. حتی لوی امام او د قران کریم جامع زید بن ثابت هم دا شاهدي ادا کړه چي پیغمبر علیه سلام ابوهریره ته دعا وکړه چي الله تعالی یې حافظه قوي او ثابته کړي.

یوه ورځ یو کس ثابت رضی الله عنه ته راغی او سوال یې تري وکړ: هغه ورته وویل لاړ شه له ابوهریره څخه دا سوال وکړه ځکه یوه ورځ زه له ابوهریره رضی الله عنه او یوه بل کس سره په مسجد نبوي کي د دعا په کولو مشغول وو چي ناڅاپه رسول اکرم صلی الله علیه وسلم راغی، زموږ تر څنګ کښېناست او ویې ویل: خپل کار ته ادامه ورکړئ. ما او ملګری مي چي د دعا په کولو مشغول وو دعا مو له سره شروع کړ او آن حضرت صلی الله علیه وسلم آمین وایه. وروسته ابوهریره دعا وغوښته او داسي یې وویل: یا الله هغه څه چي دغو دواړو ملګرو مي در څخه وغوښتل زه یې هم در څخه غواړم او له تا څخه داسي علم غواړم چي هیڅکله هېر نشي. رسول الله صلی الله علیه وسلم امین ووایه . وروسته موږ وویل اې رسول الله صلی الله علیه وسل موږ هم له خدایه داسي پوهه غواړو چي هیڅکله هېره نشي. خو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : دوسي ځوان له تاسو مخکي والی وکړ.

له دې سره، سره د خلکو د ابوهریره په وړاندي د نظرونو ویل بند نه کړل او پټي زمزمې یې په ښکاره خبرو بدلي شوې.

ابوهريره رضی الله عنه مجبور شو چي په جرات او خپل وس سره له ځان څخه دفاع وکړي او د خپل ياد سبب خلکو ته روښانه کړي.

ويې ويل: خلک وايي چي ابوهريره رضی الله عنه زيات احاديث بيانوي.... او وايي: ولي مهاجرين او انصار د هغه په اندازه احاديث نه روايت کوي؟ بايد ووايم چي مهاجر وروڼه په بازارونو کي په کاروبار مشغول وو او انصار وروڼه هم په خپلو ځمکو کي په کښت او کرونده مشغول وو، ولي زه نېستمن سړی وم چي د خپل نس د مړولو لپاره هر وخت له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وم. کله چي به دوی نه ول زه به حاضرېدم او کله چي به دوی هېرول ما به يادول، زه معتکف شخص وم او ډېر وخت مي له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره ژوند کاوو، کله چي به هغوی تلل، زه به پاته کېدم او کله چي به هغوی هېرول ما به يادول، ما ځان په بازار کي په معامله او په کرونده کي په کرولو نه مشغول کاوو چي له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه ليري واوسم. بلکي د رسول الله صلی الله عليه وسلم په حضور کي به مشغول وم، له هغوی نه به مي غوښتل چي يوه کلمه راته وښيي او ډوډی راکړي، ما خمېره شوې ډوډی نه خوړه (نمي شوای کولای چي پيدا يې کړم)، وربښميني جامې مي نه اغوستې، غلام او وينځه مي نه درلودل، له لوږي مي په خپل نس پوري ډبري تړلې، که څوک به مي له څنګه تېرېده له هغه به مي د يوه ايت

پوښتنه کوله چي په دې سره يې خپل ځان متوجه کړم ځو ما ورسره بوزي او خواږه راکړي.

خلکو ته به يې ويل چي پيغمبر عليه سلام ورته داسي دعا کړې چي الله تعالی ورته داسي علم ورکړي چي هيڅکله هېر نشي او ويل به يې: زما د حافظې قوت د رسول الله صلی الله عليه وسلم د دعا په برکت دی. له هغه وروسته ډېر خلک د ابوهريره رضی الله عنه په وړاندي غلي شول، څه يې ونه ويل او باوري يې شو چي ابوهريره رضی الله عنه رښتيا وايي. له دې لاري يې مقام لوړ، علم او فضل يې د عام او خاص په ژبه شو.

د يوې جمعې په ورځ چي د مسلمانانو د زياتوالي له امله په جومات کي ځای نه کېده، ابوهريره رضی الله عنه ولاړ شو، د منبر تر څنګ ودرېد او خلکو ته يې په خپل خطاب کي وويل: اې خلکو د الله رسول، صادق مصدق او ابو القاسم صلی الله عليه وسلم وويل: هر څوک چي قصدا ماته د دروغو نسبت وکړي، ځان دي د دوژخ د اور لپاره تيار کړي.

ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويل يې: د قيامت په ورځ به زما امت په داسي حال کي راشي چي د اوداسه نښې به يې په تندي، لاسونو او پښو باندي معلومي وي (دا اعضاوی به سپيني او روښانه وي) نو له تاسو څخه هر څوک کولای شي د عبادت لپاره د اوداسه په زيات کولو سره دا نور زيات کړي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: که خلک پوهېدای چې د اذان په کولو او دلمانځه لپاره په لومړي صف دربدلو کي څومره فضیلت دی، دومره هجوم به یې راووړ چې دا کار به په پچه اچولو پای ته رسېده او که پوهېدای چې مسجد ته ژر تلل څومره ثواب لري دا فرصت به یې له لاسه نه ورکاوو او که پوهېدای چې د سهار او ماخستن لمونځونه څومره ثواب لري، په سینه به دهغو د ادا کولو لپاره مسجد ته تلل.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر څوک چې له تاسو څخه په لمانځه کي د خلکو امام شي، لمونځ دې نه اوږدوي، ځکه د خلکو په مېنځ کي کوچنیان، لویان، ضعیف او مریض خلک موجود وي، خو که یې وغوښتل چې لمونځ یوازې وکړي هر څومره چې یې خوښه وي کولای شي چې ادا یې کړي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له ټولو وختونو بنده الله تعالی ته هغه وخت نژدې دی چې په جومات کي وي. نو کله چې په جومات کي یاست ډېر وخت دعا وکړئ.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې تشهد وایاست له څلورو شیزونو څخه په خدای پناه وغواړئ او دا عا ووایاست " اللهم انی اعوذبک من عذاب جهنم ومن عذاب القبر ومن فتنة المحیا و الممات ومن شر فتنة المسیح الدجال" (یعني اې خدایه ! د جهنم له عذاب نه

د قبر له عذاب نه، د حیات او مرګ له فتنې نه او د دجال د شر له فتنې څخه تا ته پناه دروړم)

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: هر څوک چې له هر لمانځه وروسته دري دیرش ځله سبحان الله، دري دېرش ځله الحمد لله او دري دېرش ځله الله اکبر ووایې او په پای کې د لا اله الا الله وحده لا شریک له، له الملک وله الحمد وهو علی کل شیءٍ قدیر، په ویلو سره سل پوره کړي، د هغه ګناهونه به وبښل شي، که څه هم د دریاب د پوکانو په اندازه زیات وي.

رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په شپه او ورځ کې دوه ډلې ملائیکې تاسو ته راځي، یوه ډله د سهار په مهال او بله ډله د ماښام په مهال، دا دواړه ډلې د سهار او ماښام په لمونځونو کې یوځای کېږي (سره یوځای کیږي) او بلې ته رسیږي هغه چې په شپه کې له تاسو سره وي، سهار اسمان ته ځي، الله تعالی (سره له دې چې په هر څه پوهیږي) له هغوی څخه پوښتنه کوي: زما بنده ګان مو په څه حال کې پرېښودل؟ په ځواب کې وایي: یا الله!! کله چې هغوی ته ورغلو او کله چې له هغوی څخه راتلو د لمانځه په کولو بوخت وو.

همدارنګه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مې واورېدل چې ویې ویل: الله تعالی فرمایلي دي: ما لمونځ د ځان او بنده ترمنځ تقسیم کړی دی او بنده چې هر څه وغواړي هغه ته یې ورکوم، نو کله چې بنده ووایي:

الْحَمْدُ للّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ. تعالى فرمايي: بنده زما حمد ووايه او كله چي ووايي:

الرَّحْمـنِ الرَّحِيمِ. الله تعالى فرمايى: بنده مي زما ثنا وويله. او چي ووايي: مَـلِكِ يَوْمِ الدِّينِ. الله تعالى فرمايي: بنده مي عظمت او لويې بيان كړه. او كله چي ووايي: إِيَّاكَ نَعْبُدُ وإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ. دا برخه زما او د بنده په مېنځ كي اړه لري او بنده چي مي هر څه وغواړي هغه ته به يې وركړم. او كله چي ووايي اهدنَــا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ 6 صِرَاطَ الَّذِينَ أَنعَمتَ عَلَيهِمْ غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ

الله تعالى فرمايي: دا جملې مي د بنده لپاره دي او هر څه چي وغواړي وربه يې كړم.

ابوهريره رضی الله عنه همداسي حديثونه بيانول تر څو يې چي احساس كړ، د اذان وخت را رسېدلی دی، نو يې خپلو خبرو ته خاتمه وركړه.

ددې حديث له بيان وروسته ابوهريره رضی الله عنه د خلكو په مېنځ كي كښېناست، دجمعې لمونځ ودرېد. له لمانځه وروسته يو سړی چي له ابوهريره رضی الله عنه څخه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې ټولو حديثونو د بيانولو څخه حيران شوی وو. په منډه منډه يې ځان د حضرت عايشې رضی الله عنها حجرې ته ورساوو، سلام يې واچا وو او ويې ويل: اې ام المؤمنين! هغه حديثونه چي ابوهريره رضی الله عنه خلكو ته بيان كړل وادي ورېدل؟ هغې وويل: هو.

هغه سړي وويل: ايا دا ټول حديثونه يې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي؟ حضرت عايشې رضی الله عنها هم په تعجب سره هغه ته وويل: له ابوهريره رضی الله عنه سره به په دې اړه خبره وکړم. يوه ورځ وروسته حضرت عايشې رضی الله عنها يو کس ابوهريره رضی الله عنه ته ولېږه او هغه يې ځان ته وغوښت. بيا يې هغه ته وويل: ته له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه زيات حديثونه روايت کوې، ايا تا ډېر وخت هغه له ما څخه ليدلی او خبري دي يې اورېدلې دي؟ ابوهريره رضی الله عنه پوه شوچې دا خبري د هغه په اړوند د خلکو د خبرو انعکاس دی. د زړه په ارامي او هوښياري سره يې د حضرت عائشې رضی الله عنها په ځواب کي وويل: اې مورې! ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم لپاره د اينې او رنجلومي په برابرلو مشغوله وې. خو په الله قسم هيڅ څيز نشوای کولای چې زما توجه له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه خپل ځان ته واړوي او يوه شېبه ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه غافل کړي.ام المؤمنين حيرانه شوه او نه پوهېده چې ابوهريره رضی الله عنه ته څه ځواب ورکړي، نو ځکه غلې پاته شوه او ابوهريره رضی الله عنه هم خپل کور ته لاړ.

ابوهريره همداسي د رسول الله صلی الله عليه وسلم د حديثونو بيانولو ته ادامه ورکړه، له کوم انتقاد کوونکي څخه نه ډارېده او د هري ملامتي ملامتوونکي نه پرېشانه کاوو.

کله به دحضرت عائشې رضی الله عنها د حجرې څنګ ته راته، خلک به دهغه په لیدلو سره یو ځای کېدل او ابوهریره رضی الله عنه به ورته حدیثونه بیانول. حضرت عائشې ته به یې په خطاب کې ویل: اې دحجرې مېرمنې! غوږ شه. حضرت عایشې رضی الله عنها به هم دنورو اصحابو په څېر د هغه خبرو ته غوږ نیو او څه به یې نه ویل ځکه د ابوهریره رضی الله عنه له خولې یې د هغې جملې له اورېدلو وروسته له ځان سره وعده کړې وه چې هغه ته به څه نه وایي. څرنګه چې ابوهریره رضی الله عنه دوهم ځل دا خبره تکرار کړې وه، یو ځل داسې چې ټولو خلکو اورېدلې وه او بیا د ځینو اصحابو په حضور کې په همدې نوبت کې وو چې دحضرت عایشې رضی الله عنها حجرې ته په ورننوتلو یې له نژدې هغې ته سلام واچاوو او ویې ویل: السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته. ام المؤمنین هم هغه ته د پردې له شا څخه ځواب ورکړ او ویې ویل: وعلیکم السلام ورحمة الله وبرکاته او پوښته یې وکړه چې ابوهریره، ته یې؟ هغه وویل: هو. هغې وویل: له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه زیات حدیثونه روایت کوې؟ ابوهریره رضی الله عنه هغه ځواب چې مخکې یې دې ته ویلی وو، تکرار کړ او ویې ویل: هو، په الله قسم، اې مورې زه اینې، رنجلومې او تېلداني نه وم مشغول کړی. د اسلام ستري مېرمن دهغه په ځواب کې وویل: ښایي ابوهریره په خپل حفظ باور ولري او د الله د دین، د الله د رسول او د ټولو

خلکو خیر خواهی او د علم د بې توجهي وېري د حدیثونو بیانولو ته وادار کړی وي.

ابوهریره رضی الله عنه له دوو ایاتونو ته چي په قران کریم کي راغلي دي متوجه وو او ویل یې: په الله قسم، که چیري دغه دوه ایاتونه په قران کریم کي نه وای هیڅکله به مي تاسو ته حدیثونه نه وای بیان کړي، چي عبارت دي له:

﴿ إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ أُولَـئِكَ يَلعَنُهُمُ اللّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللاَّعِنُونَ ﴾ البقره: ۱۵۹

(بېشکه څوک چي پټوي هغه چي موږ نازل کړل صفا حکمونه او د هدایت خبري پس دهغې نه چي موږ دا پرانیستل د خلکو د پاره په کتاب کښې په هغوی لعنت کوي الله او لعنت کوي په هغوی لعنت کوونکي)

﴿إِلاَّ الَّذِينَ تَابُواْ وَأَصْلَحُواْ وَبَيَّنُواْ فَأُوْلَـئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ﴾ البقره ۱۶۰

(مګر چا چي توبه وکړه او درست یې کړ خپل کلام او بیان یې کړه حقه خبره نو هغوی معاف کوم او زه لوی ښښونکي ډېر مهربان یم)

یو شمېر خلک عبدالله بن عمر رضی الله عنه ته ورغلل او اعتراض یې وکړ چي حضرت ابوهریره رضی الله عنه زیات احادیث روایت کوي. هغه هم د ابوهریره رضی الله عنه په اړه په شک او تردید کي شو. له هغه وروسته چي به حضرت

ابوهريره رضی الله عنه حديثونه روايت کول خصوصاً د جمعې په ورځ به يي په دقت غوږ ورته نيو، خو څه يې ونه موندل چي ورباندي اعتراض وکړي بلکي د هغه په ځای يې د ابوهريره رضی الله عنه قوی او ځيرکه حافظه وستايله او شک يې ورو ورو له مېنځه لاړ. البته جزئي نکتو وجود درلود، هغه منتظر وو چي هغه شکمنې نکتې هم ها خوا شي. يوه ورځ دهغو وخت هم راورسېد، يعنې ابوهريره رضی الله عنه حديث روايت، هغه يې پيغمبر صلی الله عليه وسلم ته منسوب کړ او ويې ويل: پيغمبر صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: "هر څوک چي د جنازې تر شا لاړ شي او په هغې لمونځ وکړي، الله تعالی په بدله کي ديوه قيراط په اندازه ثواب ورکوي او که دهغه په دفن کولو کي برخه واخلي دوه قيراطه به په لاس راوړي او هر قيراط د احد له غره څخه لوی دی."

ابن عمر رضی الله عنه ددې حديث له اورېدلو وروسته چي هغه يې لوی وباله، دابوهريره رضی الله عنه لاس ونيو او يوې ګوښې ته يې بوت او ورته ويې ويل: ای ابوهريره رضی الله عنه دا کوم حديث وو چي له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه دي نقل کړ؟ ابو هريره رضی الله عنه وويل: په الله قسم، له هغه څه پرته چي اورېدلي مي دي بل څه مي نه دي روايت کړي. بيا يې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه لاس ونيو او د حضرت عائشې رضی الله عنها حجرې ته لاړ، ويې

ويل: اې ام المؤمنين! تاته په خدای قسم درکوم چي دا حديث دي له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه نه واورېد چي فرمايل يي: هر څوک چي د جنازې تر شا لاړ شي او په هغې لمونځ ادا کړي، الله تعالی په بدله کي د يوه قيراط په اندازه ثواب ورکوي او څوک چي د هغه په تدفين کي برخه واخلي د دوو قيراطو په ندازه اجر به تر لاسه کړي. او هر قيراط داحد تر غره لوی دی."

حضرت عائشې رضی الله عنها وفرمايل: هو!

دحضرت ابوهريره رضی الله عنه څېره له خوشحالۍ وځلېده اوابن عمر رضی الله عنه ته يې وويل:اې د عبدالرحمن پلاره! زه کرلو په کرونده او کارو بار په بازار کي نه وم بوخت کړی او له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه يې نه وم بې پروا کړی، بلکي زه هر وخت له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وم او له هغه به مي غوښتل چي يوه خبره راته وښيي او خواړه راته راکړي.

ابن عمر رضی الله عنه يې خبري ومنلې او ويې ويل: "اې ابوهريره رضی الله عنه! ته له موږ څخه ډېر وخت له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وې او تر موږ ټولو د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم په حديثونو عالم يې."

حضر ت ابن عمر رضی الله عنه له هغه جدا شو په داسي حال کي چي له ارمانه يې لاسونه يو په بل موښل او ځان يې ملامت کاوو، ويې ويل: "زيات قيراطونه مي له لاسه ورکړي

دي." دا پېښه ددې باعث شوه چې د حضرت ابوهريره رضی الله عنه دزياتو حديثونو د روايت په اړوند دهغه شک له منځه لاړ شي او همدارنګه پوه شو چې داشخص (ابوهريره رضی الله عنه ) د قوي حافظې څښتن او ريښتيا ويونکی دی چې په دې ميدان کې له ټولو مخکې شوی او د وړاندې والي کړۍ يې وړې ده.

يوه ورځ ابن عمر رضی الله عنه ته يو کس راغی او ويې ويل: اې دعبدالرحمن پلاره! ايا يو شمېر حديثونه چې حضرت ابوهريره رضی الله عنه يې روايت کوي نه منې؟ ابن عمر وويل: " نه، مګر بايد ښکاره کړم چې زموږ او دهغه په منځ کې يو فرق وجود لري، هغه دا چې هغه جرات وکړ او موږ بې زړه شوو." هغه کس له دې چې ابن عمر دا ستر صحابي او لوی عالم تائيد کړ، خوښ شو، ولاړ او حضرت ابوهريره رضی الله عنه ته يې دا کيسه وويله. ابوهريره رضی الله عنه په داسې حال کې چې تبسم يې کاوو وويل: ګناه مې داده چې مانه دې هير کړي او هغوی هېر کړي دي.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه لپاره مدينه منوره تر ټولو ښکلی ښار وو، په مدينه کې هستوګنه تر بل هر ځای خوښوله، خو له دې سره د کعبې شريفې د زيارت لېوال هم وو.

همدارنګه خوښوله يې چې ځيني اسلامي ښارونه هم ووينې او هغه علم، حديثونه او پوهنه چې لري د هغو ځايونو

د خلکو په اختيار کي ورکړي. له دې سربېره يې نور مشکلات هم درلودل چي له مدينې څخه د هغه د وتلو مانع وو له هغې جملې يې زړه مور چي ابوهريره رضی الله عنه به يې هره ورځ ليدلو ته ورته او مينه به يې ورسره ښکاره کوله حق به يې ورپه ځای کاووا و ويل به يې : مورې الله تعالی دي د نېکي جزا درکړي چي زه دي په ماشومتوب کي وپاللم. مور به يې په ځواب کي ويل: زويه الله تعالی دي تاته هم اجر در کړي چي په زوړ والي کي له ماسره نېکي کوې.

ابوهريره رضی الله عنه مجبور وو چي په مدينه کي پاته شي او له هغه ځايه چېرته ونه ښورې، تر دې چي هغه وفات شوه.

له هغه وروسته ابوهريره رضی الله عنه د سفر هوډ وکړ او په اسلامي خاورو کي يې قدم کښېښود، له مختلفو اسلامي ښارونو يې ليدنې وکړې کوفې، بصرې، دمشق او نورو ځايونو ته لاړ. هر ښار ته چي به رسېده، خلک به يې په چاپېر راټول شول. ابوهريره رضی الله عنه به ورته حديثونه ويل او هغوی به يې له خپل علم څخه فايده من کول.

وايي: خلک به يو بل ته سره ورغلل چي د شپې له خوا سره راټول شي، ابوهريره رضی الله عنه به يې په مېنځ کي ودرېد او تر سهار پوري به يې حديثونه ورته بيانول. هغه يوازي د مور له وفات څخه وروسته وکولای شول چي د حج په مراسمو کي برخه واخلي او په دې مراسمو له پوهانو او د حديثونو له

مینه لرونکو خلکو سره ویني. هغوی هم له فرصت څخه استفاده کوله، تر څو چې به یې له علم او پوهې څخه څه په لاس نه وو راوړي له هغه څخه نه جدا کېدل.

ابوهریره رضی الله عنه چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه څه اورېدلي وو، خلکو ته یې ویل خو د علم له څېرکو یې یوازي یو څېرکی له ځان سره ساتلی وو، ځکه د دې څېرکي ډېری حدیثونه د شر، فتنو او د راتلونکي او تېر وخت د پېښو په اړه وو چې خلکو ته یې تصور ګران وو. ابوهریره رضی الله عنه ډارېده چې هغه خلکو ته واوري وبه یې نه مني او نبوي حدیثونه به د دروغو تر نوم لاندې راشي، نو ځکه یې په غور سره دې ته ترجیح ورکړه چې دا حدیثونه خلکو ته ونه وايي. ابوهریره رضی الله عنه څو ځله خلکو ته وویل چې له هغه سره داسي علم دی چې خلکو ته یې نه دی ښوولی او څه چې دوی ته یې ویلي دهغه ټول علم نه دی، همدرانګه ویل به یې: پیغمبر علیه سلام د علم دوه لوښي زما په اختیار کي راکړل، ما یو د خلکو لپاره خاص کړ او بل مي له ځان سره وساته، ځکه که هغه ووایم غاړه مي وهل کېږي. ویل به یې د حدیثونو کڅوړي له ابوهریره رضی الله عنه سره دي چې تر اوسه یې نه دي خلاصي کړې.

د دې ستر عالم منظور تر هغه ورسته د اسلام امامانو ومونډ.

امام ذهبي د ابوهريره رضی الله عنه  ددې خبرې په خپل نظر کي دا سي ويلي دي: " زما په نظر ځيني احاديث چي د اصولو، فروع، مدح او ذم په باره کي وي او د فتنو د تحريک باعث ګرځي، پټول يې جايز دی خو کوم حديثونه چي د حلال او حرام په اړه دي په هيڅ وجه يې پټول جايز نه دي ځکه هغه حديثونه له ښکاره څيزونو او هدا ياتو څخه دي. "

امام بخاری له حضرت علی رضی الله عنه  څخه نقل کوي چي فرمايي: " هغه احاديث د خلکو لپاره بيان کړئ چي په مطلب يې پوهېږئ او د هغو احاديثو له ويلو څخه صرف نظر وکړئ چي په مطلب يې نه پوهېږئ، ايا تاسو خوښوئ چي الله او رسول يې تکذيب شي؟"

حافظ ابن کثير وايي: دحديثونو هغه لوښی چي ابوهريره رضی الله عنه  دخلکو لپاره بيان نکړ، په حقيقت کي د فتنو، مشکلاتو او هغو جنګونو په اړه دي چي د خلکو په مېنځ کي پېښ شول او يا هغه پېښې دي چي له هغو وروسته پېښېږي. که يې مخکي له هغو خبر ورکولای ډېرو خلکو به درواغ بلل او ريښتينې او صحيح خبره چي به يې ويله نه به يې منله. مثلا که يې ويل: تاسو ته وايم چي امامان به ووژني، د يوه او بل په مخ به توره وکښل شي زما خبره مو منله؟"

امام ابن حجر(شارح بخاری) له ابن منير څخه په نقل وايي: د ابوهريره رضی الله عنه  هدف له دې خبرې(که احاديث روايت کړم ستونی به مي پرې شي) څخه دادی چي

کله ظالمان واوري چي هغه د دوی په کارونو انتقاد کوي او د هغوی هڅي ناپوهي بولي، ممکن غاړه يي ووهي.

ځينو ويلي دي: احتمال لري چي هغه حديثو د قيامت د علامو او يا په اخره زمانه کي د حالاتو د تغير او د فتنو د وقوع په اړه وي که څوک يې درک نه کړي نه يې مني او حتی هغه څوک چي پوهه نه لري په هغوی نيوکه کوي.

د حديثونو په روايت او حفظ کي د ابوهريره رضی الله عنه د شهرت له امله زيات شمېر خلک د حديثونو د زده کولو لپاره مدينې ته ورغلل او ورځ په ورځ يې شمېر زياتېده، تر دې چي اته سوه کسه ته ورسېد. د هغوی په مېنځ کي يو شمېر مشهور صحابه لکه انس بن مالک، جابر ابن عبدالله، ابن عباس، اثله بن الاسقع هم ليدل کېدل رضی الله عنهم. همدارنګه د اصحابو کرامو زامن او ستر تابعين لکه حسن بصری، سعيد بن مسيب (څوک چي لور يې ابوهريره ته واده کړه)، محمد بن سيرين، ابوادريس خولاني او ابو مسلم بن عبدالرحمن هم د هغه له شاګردانو څخه وو رحمة الله تعالی عليهم اجمعين.

پورتنۍ پېښې د مروان بن حکم توجه چي د معاويه رضی الله عنه له لوري د مدينې حاکم ټاکل شوی وو ځان ته واړوله او هوډ يې وکړ چي ابوهريره رضی الله عنه وازمايي او د هغه د ياد په اړه چي هغه يې په کراتو ادعا کوله چي "ګناه مي څه ده، چي ما ياد کړي او هغوی هېر کړی دي؟" ډاډ حاصل کړي.

مروان د دې کار د سرته رسولو لپاره خپل پوه او ځيرک ليکونکی ابو الزعيزعه ته وويل: "غواړم ابوهريره رضی الله عنه وازمايم، نو ځکه زه هغه حاضروم او له هغه څخه حديث پوښتم، ته د پردې شاته ودرېږه او هغه حديث چي دی يې وايي يادداښت يې کړه."

ابوهريره رضی الله عنه راغی، مروان سوالونه ورڅخه شروع کړل چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د پلاني مطلب په اړه څه فرمايلي دي؟ يا يې فلاني ته څه ويلي دي. ابوهريره رضی الله عنه هغه ډول ته وا چي د کتاب له مخي يې وايي حديثونه ورته ويل او ابوالزعيزعه همهغه ياداښت کول. اخر پوښتنه او سوال کول پای ته ورسېدل او ابوهريره خپل کور ته لاړ. يو کال وروسته، مروان ابوهريره خپل ځان ته راوباله او د تېر کال په څېر يې خپل ليکونکي ته وويل: تر پردې شاته کښېنه، زه هماغه تېر سوالونه ترې کوم، ته ځوابونه ورسره مقايسه کړه.

ابوهريره رضی الله عنه راغی. مروان وروسته او وړاندي هغه تېر سوالونه ترې وکړل. ابوهريره رضی الله عنه ځواب ورکاوو او ابوالزعيزعه خپلي ليکنې ته کتل. ويې ليدل چي ابوهريره رضی الله عنه له کمي او زياتي پرته هماغه کلمات بيانوي. هغه مهال ابوهريره رضی الله عنه د مروان کار ته متوجه شو او ويې ويل: ولي هغه د تېر کال مطالب پوښتې؟

مروان وويل:غوښتل مي تاوازمويم. دا وخت ابو الزعيزعه د پردې له شا څخه راووت او مروان ته يې وويل: اې اميره ! په الله قسم، له حديثونو څخه يوه کلمه کمه يا زياته اويا مخکې او وروسته نه وه.

مروان وخندل، د ابوهريره رضی الله عنه څېره پراخه او وځلېده. بيا ابوهريره رضی الله عنه مروان ته وويل: زه څو کاله له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره وم. په هغو کلونو کې مې له هر څه ډېره مينه له دې سره وه چې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه يوه خبره زده کړم او دعمر په همهغو کلونو کې پوه وم او ښه مې بلله چې هر څه رسول لله صلی الله عليه وسلم فرمايي، هغه ياد کړم. هغه صلی الله عليه وسلم هم راته دعا کوله. اې دعبدالمالک پلاره! په الله قسم، ټول هغه څه چې مې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي دي تاسو ته نه وايم. دعلم يوه کڅوړه زما سره ده چې تر اوسه مې نه ده خلاصه کړې.

# د مدينې امير

د مختلفو ښارونو مسلمانانو ورو، ورو د ابو هريره رضی الله عنه په فضيلت پوه شول. په ځانګړې ډول د مدينې خلک، ځکه هغه د دوی لومړنی معلم شمېرل کېده. له ډېرشو کلونو زيات وخت تېرېده چي ابوهريره رضی الله عنه هغوی ته د حديثونو په زده کړه مشغول وو. په خلکو ګران وو، هر ځای به يې د هغه ستاينه کوله او مرتبه يې لوړه بلله. څرنګه چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم له غوره اصحابو څخه وو نو کله کله به په لمانځه کي د خلکو امام کېده هم.

مروان چي په مدينه منوره کي د معاويه رضی الله عنه حاکم وو هغه ته يې زيات احترام درلود، ځکه د هغه حفظ، تقوا او پرهېزګاري هغه حيران کړی وو. په کومو مسئلو کي چي به ورته مشکل پيدا کېده له هغه به يې فتوا او د نظر څرنګوالی غوښت او د هغه په اجتهاد به يې عمل کاوو. مروان خپل زامن عبدالعزيز او عبدالمالک ابوهريره رضی الله عنه ته وسپارل چي هغوی ته فقه ورزده او د دين له مسئلو يې باخبره کړي.

هغه څه چې د ابوهريره رضی الله عنه مقام يې د مروان په وړاندې لوړ کړی وو، دا وو چې هغه په علم کې صادق او په عمل کې مخلص وو چې د الله تعالی له رضا پرته يې بل هدف نه درلود، نو ځکه يې د حق د خبرې په کولو کې جرات درلود او د هيڅ ملامتي څخه نه ډارېده، څنګه چې خپله مروان ته يې په نيکي امر او له بدي نهي کوله، په کراتو يې هغه ته بې له سترګې پټولو نصيحت او د هغه لپاره وعظ کاوو.

د مروان غلام ابومريم وايي: يوه ورځ مروان د مدينې د ښار په مېنځ کې ځان ته په کور جوړولو لګيا وو، زه نژدې ورسره کېنستم او د هغه د کار څرنګوالی مې کوت، په دې وخت کې ابوهريره رضی الله عنه هملته تېرېده، دهغوی په ليدلو يې وويل: کور ټينګ جوړ کړئ، اوږدې هيلې ولرئ، ژر به مړه شئ. مروان راته وويل: ابوهريره رضی الله عنه څه وايې؟ هغوی ته مې وويل،وايي: کور ټينګ جوړ کړئ، اوږدې ارزوګانې ولرئ، ژر به مړه شئ.

مروان د دې جملې له اورېدلو غلی شو، ابوهريره رضی الله عنه يو شمېر مهاجرينو ته په خطاب کې وويل: اې قريشو! په ياد راوړئ چې پرون څه واست او نن څه ياست. نن ورځ خلک تاسو ته کار کوي، د فارس او روم د سيمو د غلامانو لرونکې ياست، د سپينو اوړو ډوډی او غوښې خورئ، نو کوښښ وکړئ د حيواناتو په څېر يو او بل مه سره خورئ، نن ځانونه واړه وشمېرئ تر څو مو الله تعالی سبا ته لوی

وګرځوی. په الله قسم له تاسو هيڅ څوک نشته چي مقام يې يوه درجه لوړ شي او الله تعالی يې د قيامت په ورځ کښته رانه ولي.

بيا د مروان کور ته ننووت او ويې ليدل چي په دېوال باندي تصوېرونه ښکل شوي دي، ويې ويل: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويل يې: "الله تعالی فرمايلي دي: څوک دی ظالم له هغه چا چي جوړ کړي په څېر د هغه څه چي ما پيدا کړي دي، که ريښتيا وايي او کولای شي د عالم کوچنۍ ترينه ذره دي جوړه کړي که څه هم د غنم يا جوار دانه وي."

يوه ورځ ابوهريره رضی الله عنه په دارالاماره کي مروان ته ورغی، مروان د دروازې ساتونکي ته وويل: وګوره چي څوک دی؟ ساتونکي وويل: ابوهريره رضی الله عنه دی. مروان د داخلېدلو اجازه ورکړه، بيا يې وويل: "د رسول الله صلی الله عليه وسلم له احاديثو راته يو حديث روايت کړه." ابوهريره رضی الله عنه وويل: ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويې ويل: "داسي ورځ به راشي چي ډېر اميران به داسي هيله لري چي کاشکي له اسمان څخه ځمکي ته رالوېدلي وای خو چي د امارت شغل يې په غاړه نه وای.

دې موضوع د ابوهريره رضی الله عنه مقام د هغه له علم او فقي سره د مروان په وړاندي لوړ کړ. له دې امله په ۴۵ هجری

کال کي کله چي معاويه رضی الله عنه ، مروان د همدې کال د حج مسؤل وټاکه هغه ته يې وويل چي په مدينه کي خپل ځای ناستی حضرت ابو هريره رضی الله عنه وټاکي.

مروان د جمعې په ورځ منبر ته پورته شو او د مدينې د خلکو تر غوږ يې ورسوله چي هغه حضرت ابو هريره رضی الله عنه په مدينه کي خپل ځای ناستی پرې ايښی دی. خلک د دې خبري له اورېدلو خوشحاله شول، ځکه د مدينې خلکو حضرت ابو هريره رضی الله عنه ډېر خوښاوو، نېک اخلاق او ښکلې سيرت يې د ټولو خلکو خوښ وو.

ابو هريره رضی الله عنه د امارت دنده په غوره ډول سر ته رسوله، په لمانځه کي د خلکو امام وو. د جمعو په ورځو به يې هغوی ته خطبه ويله. د عدالت سياست يې غوره کړ، د هغوی په جګړو کي به يې قضاوت او اختلافات به يې ورحل کول، د هغوی په منځ کي يې د يوه عادي کس په څېر ژوند کاوو.

امارت د هغه په اخلاقو او رفتار کي بدلون رانه ووست. تواضع، خاکساري، فاسدو او دنيوی مقامونو ته نه توجه يې د دې باعث شوه چي ټول يې په نېکي ياد کړي، هغه د پاک وجود او ښکلو اخلاقو څښتن وو. ښکلو لوبو او د دنيا د غولوونکو ښکارونو تحقير او د الله تعالی د نعمتونو شکر د هغه د لويي او سترتوب حکايت کاوو.

يوه ورځ يې په نبوي مسجد کي د لمانځه له درېدلو ورسته خلکو ته په خطاب کي په لوړ غږ وويل: د الله تعالى شکر دی چي دين يې ټينګ او محکم کړ او ابوهريره يې وروسته له دې چي د غزوان لور ته يې د نس د مړولو او د سورلۍ د درلودلو لپاره کار کاوو، د خلکو امام وګرځاوو. اې مسلمانانو، په الله قسم! ما د هغوی خدمت يوازي د يوې ټوټې ډوډۍ او ددې لپاره چي په تياره شپو کي ما په اوښ سپور کړي، په غاړه واخيست، بيا الله تعالى هماغه ښځه زما مېرمن کړه.

کله به په خره سپرېده چي ځل يې درلود او د خرما د تارونو يو نری پړی يې په غاړه وو، ابوهريره رضی الله عنه د هغه په وسيله کارونه سرته رسول، کله چي به خلکو سپور يا پياده په داسي حال کي چي د خاشو پنډه به يې په اوږه وه وليد، ويل به يې: امير دی لار ورکړئ.

ثعلبه بن ابی مالک القُرظی وايي: ابوهريره مي په هغه مهال چي د مروان ځای ناستی وو په بازار کي په داسي حال کي وليد چي د سون د لرګيو کوده يې په شا وه کله چي يې زه وليدم ويې ويل: ابن ابی مالک د امير لپاره لار خلاصه کړه. ومي ويل: همدومره بس ده؟ بيا يې وويل: د امير لپاره لار خلاصه کړه.

يوه ورځ د ابوهريره رضی الله عنه يوه دوست ابو رافع، ابوهريره رضی الله عنه شام ته دعوت کړ، کله چي ډوډۍ

کېښنودل شوه ویې ویل: ابو رافع هغه هډوکي چې غوښه لري د امیر لپاره پرېږده.

ابو رافع فکر وکړ چې په ډوډۍ کې یې غوښه وجود لري، خو کله چې یې ولیدل، خواړه یې په غوړیو کې میده شوي ډوډۍ ده په داسي حال کي چي خندل یې وویل: ابوهریره ته یو خوښ طبیعته سړی یې.

یوه ورځ د جماعت نه د راوتلو وروسته یو ځوان ورته راغی او ویې ویل: ولي یې ستا کنیه ابوهریره ایښې ده؟ ابوهریره ورته وکتل او ویې ویل: له ما څخه نه ډارېږې؟ ویې ویل: هو له تا نه ډارېږم. ابوهریره وویل: ما د خپل کور پسونه پوول، یوه وړه او صحرایي پشي مي درلوده چې د شپې مي د وني لاندي پرېښوده او چي ورځ به شوه، هغه به مي له ځان سره صحرا ته بیوه او ساتېري به مي ورسره کوله، نو ځکه یې زما کنیه ابو هریره کېښوده.

کوچنیان به هم د ابوهریره له نیکي رویې، عاجزي او خوښو څخه برخمن کېدل، وایي: هلکانو به د شپې د کلاغ لوبه کوله، بې له دې چې هغوی متوجه شي، ابو هریره به په ارامي سره هغوی ته نژدې کېده او ناڅاپه به یې ځان د هغوی لوبي ته ننیوست، خپلي پښې به یې کښنولي (غوښتل یې ماشومان وخندوي) هلکان به وېرېدل او تېښته به یې کوله.

مروان دوه ځلي ابوهریره رضی الله عنه په مدینه کي خپل ځای ناستی وټاکه او په دې وسیله یې هغه نازاوو، ځان ته

یې نژدې کاوواو د هغه د علم او کمال له امله یې ورته تحفه ورکوله.

معاویه رضی الله عنه هم د ابوهریره مقام لوړ ساته او له دمشق نه به یې ورته تحفې استولې. له دې سره سره ابوهریره رضی الله عنه نشوای کولای چې له اسلام سره د مروان په کوچني مخالفت غلی پاته شي، ځکه هغه یو صادق عالم وو، چې د الله د رضا او په اخرت کې د سر لوړي فکر یې کاوو. هغه مروان د ځینو کارونو له امله سپکاوو چې په هوښ راشي. کله به خبره دې ته ورسېده چې مروان به قهرجن شو، بیا به هم ابوهریره رضی الله عنه د حق د د فاع پرته بل څه نه ویل.

یوه روځ ابو هریره رضی الله عنه په دار الاماره کې مروان ته ورغی او ورته ویې ویل: تا د ربا (سود) بیعه حلاله کړې ده؟ مروان وویل: څه ډول؟ ابوهریره وویل: تا د محاکک[1] معامله (هغه چې روا نه ده) حلاله کړې ده، په داسې حال کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خوړو خرڅول مخکې له دې چې هغه په پوره ډول په لاس کې نه وي راوړل شوي منع کړي دي.

اخر معاویه، مروان له امارت څخه لیرې کړ او یو بل څوک یې د هغه په ځای غوره کړ، سره له دې د هغه مقام او لوړتیا د خلکو په وړاندې کمه نشوه، څرنګه چې ډېری خلکو په خاص

[1] - د محصولاتو خرڅول او اخیستل مخکې له دې چې په لاس راشي.

ډول بنی امیه وو ورته ډېر احترام درلود، ځکه د هغوی لاربښوونکی وو.

د مروان په وړاندې د حضرت ابوهریره رضی الله عنه دریځ په دواړو حالاتو یعنې د امارت او له هغه وروسته کې په نیکې امر او له بدې راګرځول وو.

# پرهېزګار عابد

د دې ستر صحابي لويه ارزو د علم طلب او د هغه نشر وو. په دې سربېره يې بله ځانګړتيا هم رلوده چې اهميت يې د علم له طلب څخه کم نه وو هغه هم تقوا او له الله تعالى څخه وېره وه، په دې ډول چې د الله تعالى د ذات وړ وه.

د الله تعالى د اطاعت په لار کي کوښښ، هغه ته نژدې کېدل، په نيکو کارونو عادي کيدل او نيکه رويه د دې ستر صحابي ځانګړتياوي وې. د اځانګړتياوي څه حيرانوونکې نه وې ځکه ټولو اصحابو له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه زده کړې وې، يعني علم او عمل دواړه يې له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه خپل کړي وو. خبره داده چې صادق عالم په خپل علم عمل وکړي، هغه په ځان عملي کړي تر څو د نورو لپاره نمونه واوسي. ابوهريره رضى الله عنه زيات عبادت کاوو، د تهجد لمونځ به يې ډېر وخت کاوو، اوږدې رکوعګاني او سجدې به يې ادا کولې، ډېر استغفار او تسبيحات به يې ويل. توبه به يې کښله او اوږدې دعاوي به يې کولې. د شپې به يې الهي دربار ته زارۍ او ژړاوي کولې، د دوشنبې او پنج شنبې ورځ به يې روژه نيوله او په هيڅ وجه يې دا روژې نه پرېښودې، شپه يې په دريو برخو وېشلې وه، دريمه برخه ويده کېده، بله دريمه به بيدار وو او عبادت به يې کاوو، دريمه دريمه برخه کي به يې هغه حديثونه چې ياد يې وو راتکرارول او په زړه به يې راوړل. خپله کور والا به يې

دعبادت لپاره د شپې په هغې برخه کې راویښوله په کومه کې چې به یې عبادت کاوو.

ستر تابعي ابوعثمان وایي: اووه ورځې د ابوهریره رضی الله عنه مېلمه وم، هغه، ښځې او خادم یې شپه درې برخې کړې وه او د شپې هره برخه یې د لمانځه په کولو تېروله یعنې لومړی به یوه لمونځ کاوو، له هغه وروسته چې وخت به یې پوره شو بل به یې راویښاوو.

هغه په ورځ کې زر کرته د ښښنې غوښتنه کوله، ډېره دعا به یې کوله او ویل به یې: ډېر بخیل هغه څوک دی چې په سلام اچولو بخالت کوي او ډېر عاجز هغه څوک دی چې له دعا غوښتلو عاجز وي.

د ذي الحجې په لومړۍ لسیزه کې به ابوهریره رضی الله عنه او عبدالله بن عمر بازار ته تلل او تکبیرونه به یې ویل، خلکو به هم په یوه غږ ورسره زمزمه کول. هغه د سهار د دوو رکعتونو په سنت لمانځه کې ډېر کوښښ کاوو او ملګرو ته به یې هم د هغو د کولو توصیه کوله او ویل به یې: د سهار دوه رکعته سنت لمونځ مه پرېږدی که څه هم اسونه مو په لغته وهي.

ابوهریره رضی الله عنه په خپل کور کې د لمانځه د کولو څلور ځایه درلودل:

۱- د کور د لویې دروازې تر څنګ (د لمانځه د کولو لپاره کوچنۍ کوټه)

۲ –په کور کي
۳ –په کوټه کي يې
۴ –د کور له دروازې سره نژدې

کله چي به له کور څخه ووت، په دې ټولو ځايونو کي به يې لمونځ کاوو، قران کريم يې زيات تلاوت کاوو، په ځانګړې ډول په لمانځه کي، د لمانځه په څومره او څنګه والي کي يې کټ مټ د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيروي کوله.

ابورافع وايي: ما د ماخستن لمونځ په ابوهريره رضى الله عنه پوري ادا کړ، هغه په لمانځه کي د اذا السماء انشقت سورت و وايه او د تلاوت سجده يې اداکړه. پوښتنه مي ترې وکړه: داکومه سجده وه؟ ويې ويل: په رسول الله صلى الله عليه وسلم پوري مي لمونځ کاوو، چي د اسجده يې ادا کړه. له هغه وروسته چي زه هم دې ايت ته رسېږم، سجده کوم.

د هري اونۍ په دوشنبه او پنجشنبه يې روژه نيوله، په مياشت کي يې درې ورځي نورې روژې هم نيوې، تر څو يې د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم وصيت په ځای کړی وي.

ويل يي : خپل ملګري حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ماته په مياشت کي ددريو ورځو روژه نيولو، د سهار د دوه رکعته سنت لمونځ کولو او تر خوب مخکي د وتر لمانځه د اداکولو توصيه کړې ده.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه د مجرد والي دوره ډېره اوږده او په کوزده کولو کي يې ځنډ وکړ، څرنګه چي ډارېده په کبيره ګناه وانه وړي، همېشه به يې په مسجد کي دعا کوله چي الله تعالی يې د کبيره ګناه له کولو وساتي ترڅو يې دين سالم پاته شي. ويل شوي چي هغه به په جومات کي له الله تعالی د زنا، غلا او نورو کبيره ګناهونو څخه پناه غوښته چي تر ې ونشي. هغه ته وويل شول: ايا ډارېږې؟ ويې ويل: زه څه امان لرم په داسي حال کي چي شيطان ژوندی دی، انسان چي د خوږ ژبوالي ترڅنګ د عمل شکر ادا نکړي، حقيقي عابد نه جوړېږي.

ابوهريره رضی الله عنه به هر وخت خلکو ته ويل چي مخکي څوک وو او اوس څوک دی او همېشه له هغه څخه د الهی نعمتونو د شکر اواز اورېدل کېده او دا کلمې يې زياتي تکرارولې: "الحمد لله الذی هدیٰ ابا هريرة للاسلام، الحمد لله الذی من علی ابی هريرة بمحمد عليه الصلوة والسلام"

د عبادت او تقوا غوره ثمره، خوښ شوي او نيک اخلاق لاس ته راوړل دي، چي الله تعالی دا داوړه په ابوهريره رضی الله عنه لورولي وو، تر نورو زيات کورنی، خپلوان، همسايه ګان او ملګري د ښه چلند وړ دي، ابوهريره رضی الله عنه له دې ټولو سره، سره له خپلي مور سره ډېره نيکي کوله او څرنګه چي يې هغه له يمن څخه مدينې ته راوستلې وه، د

هغې په شرک يې ډېر فکر وکړ، اخر مسلمانه شوه. بيا يې ځان د هغې خدمت ته وقف کړ، مور يې تر څو چې ژوندۍ وه ورباندې ګران وو او ورڅخه راضي وه.

ابوهريره رضی الله عنه له خپلو اولادونو سره نيکه رويه کوله او ښه يې تربيه کړل. له خپلو غلامانو سره يې نېکي او ښه ګزاره کوله او هغوی ته يې پوه او علم ورښود. له ورونړو او ګاونډيانو سره يې هم نېکه رويه کوله او احترام يې ورته درلود، له هغوی سره په ورين تندي مخامخ کېده او په خوږو جملو ورسره غږېده.

په لنډ ډول ټول خلک يې خوښول او له هغوی سره يې مهرباني کوله، د ټولو خير غوښتونکی وو، خپل بدن يې د خلکو د تعليم او تعلم په خدمت کې کړی وو، هغوی ته يې په نيکۍ امر او له بدۍ يې راګرځول. د خلکو په وړاندې متواضع وو او په خپلو ښکلو کړنو يې هغوی خوشحاله ساتل.

داستر عالم په علم، شهرت او مقام باندې مغرور نه وو. ابن عباس ته چې له هغه نه ډېر وړوکی وو، ويل يې: ته له مانه غوره او عالم يې. ابوهريره رضی الله عنه ببښونکی او مهربان وو.

طغاوي وايي: په مدينه کې مې له حضرت ابوهريره رضی الله عنه سره واړول، د رسول الله صلی الله عليه وسلم هيڅ

صحابي مي ونه ليد چي د هغه په اندازه د مېلمه خدمت وکړي.

حميد بن مالک بن خيثم وايي: له ابوهريره رضی الله عنه سره مي د هغه په ځای چي په عقيق کي وو، ناست وم، د مديني خلک چي په حيواناتو سپاره وو هغه ته راغلل. هغه ماته وويل: زما مور ته ورشه، زما سلام پرې وايه او ورته ووايه چي ماته مېلمانه راغلي دي او ډوډۍ راته راولېږه. مور يې درې پاستي د وربشو ډوډۍ له يو څه غوړيو او مالګي سره په يوه کاسه کي راواچول او ماته يې راکړل. هغه مي په سر کېښود ل هغوی ته مي راوړل، کله چي مو د غذا دسترخوان وغوړاوو، ابوهريره رضی الله عنه تکبير ووايه او ويې ويل: د الله تعالی شکر دی چي موږ يې په ډوډۍ وروسته له دې ماړه کړو چي له خرما او اوبو پرته مو بل څه نه درلودل.

حميد وايي: کله چي مېلمانه لاړل، ماته يې وويل: اې وراره! له خپلو پسونو سره ښه چلېږه. د پوزي اوبه يې ورپاکي کړه او په شپه کي يې سم ځای ويده کړه. په يوه ګوښه ځای کي لمونځ وکړه، ځکه پسونه د جنت له حيواناتو څخه دي. په الله قسم په خلکو به داسي وخت راشي چي د پسونو څښتن ته به خپله رمه د مروان له کور نه غوره وي.

د مروان کاتب، ابو الزعيزعه وايي: مروان سل دیناره ابوهريره رضی الله عنه ته ورولېږل، څه وخت وروسته يې يو

کس ورواستاوو او ويي ويل: ما سهوه کړې وه، هغه څه چي مي تاته در استولي وو، ستا برخه نه وه، هغه بېرته را ولېږه.

ابو هريره رضی الله عنه وويل: د هغو پيسو يوه برخه راسره پاته ده، هر وخت چي زما برخه راورسېږده همدا ورڅخه کمي کړئ.

ابوالزعيزعه وايي: مروان غوښتل چي پوه شي، هغه پيسي ابوهريره رضی الله عنه نفقه کړې او که يې له ځان سره ساتلې دي؟

ابوهريره رضی الله عنه خپل مال د غلامانو د ازادولو او يتيمانو د پاللو لپاره صرف کاوو.

وايي يوه ورځ يې په خپله مېنځه چي ورڅخه نا راحته شوې وه متروکه پورته کړه څو يې تنبه کړي، بيا يې وويل: که د قيامت په ورځ قصاص نه وای، ته مي وهلې، خو اوس دي خرڅوم، چي زما مهم او عاجل ضرورتونه پرې پوره شي، ځه لاړه شه او د الله تعالی د رضا لپاره ازاده يې.

ابوهريره رضی الله عنه خوش طبيعته وو او د ښکلو ټوکو کول يې خوښول. د مثال په ډول: يوه ورځ يو ځوان ورته راغی او ويې ويل: اې ابوهريره رضی الله عنه روژه مي نيولي وه، ناڅاپه مي پلار په داسي حال کي راغی چي يو څه ډوډۍ او غوښه ورسره وه، بې پامه مي يوه اندازه وخوړه.

ابوهريره رضی الله عنه وويل: دا هغه خواړه وو چي الله تعالی تاته ښبنلې وه. ويې ويل: بيا کور والاوو ته ورغلم،

هغوی راته شیدې راوړي، په ناپامي کي مي وڅښلې.
ابوهريره رضی الله عنه وويل: تاته کوم مشکل نشته. ځوان
وويل: بيا ويده شوم، کله چي راويښ شوم اوبه مي وڅښلې.
ابوهريره وويل: وراره ! ته تر اوسه په روژه نيولو نه يې عادت
شوی.

کله چي ابوهريره رضی الله عنه شتمن شو، پښمي او
ورېښمي جامي به يې کولې، سره له دې هم دنيا نشوای
کولای چي هغه وغولوي او هغه همداسي له دنيا سره بې
ميني او له اخرت سره يې زړه تړلی وو.

د پيغمبر عليه سلام او خلفای راشدينو د ژوند لاريې
غوره کړې وه او د رسول الله صلی الله عليه وسلم هدايات يې
د خپل ژوند قانون او د کار کړنلاره ګرځولې وه. همېشه يې
درسول الله صلی الله عليه وسلم دې وصيت ته پام کاوو چي
ويلي يې وو: " اې ابوهريره ! پرهېزګار اوسه چي تر ټولو
خلکو عابد شې، قناعت ولره چي تر ټولو خلکو شکر
کوونکی شې، څه چي ځان ته نه خوښوې نورو ته يې هم مه
خوښوه چي مؤمن شې، له همسايه سره دي نيک چلند کوه
چي واقعي مؤمن شې، کم خانده، ځکه خندا زړه مړ کوي." نو
ځکه هغه دنيا ته پام نه کاوو او ټوله توجه يې اخرت ته وه.

هغه د دنيا خوندونه او ښکلاوي ناڅيزه بللې او ويل به يې
چي ژر به رانه قبر کي پوښتنه وشي، د پروردګار لور ته به لاړ
شم او زما د اعمالو محاسبه به وشي. هغه ځان او نورو ته په

ورځ کي دوه ځلي د قبر عذاب ورپه يادا وو. د سهار په مهال به يې ژړل چي شپه لاړه او ورځ راغله او د فرعون آل په عذاب اخته شو او په شپه کي به يې ويل ورځ لاړه شپه راغله او د فرعون آل په عذاب اخته شو.

هر چا چي به داغږ اورېده د دوږخ له اوره به يې له الله تعالى نه پناه غوښته، هر وخت چي به يې جنازه ليده ويل به يې: تا سو ماښام ځئ او موږ به سهار در شو. يا تاسو سهار ځئ او موږ به شپه کي درشو.

هغه همېشه د اخرت د حساب او کتاب په فکر کي وو او د الله تعالى له عذاب څخه ډارېده، دنيا ته يې کومه توجه نه وه او خلکو ته يې ويل: هيڅ فاسق دي په دې نه غولېږي چي الله تعالى ورته نعمت ورکړی دی.

كُلَّمَا خَبَتْ زِدْنَاهُمْ سَعِيراً

ژباړه: کله چي په مړ کېدو شي (اور) نو موږ به يې زياتوو، په هغوی باندي.

# د ابوهريره رضی الله عنه د ژوند وروستۍ ورځ

ددې ستر صحابي عمر ډېر، د پوخوالي له مرحلې څخه تېر او زړښت ته رسېدلی وو. هغه د پيغمبر عليه سلام له وفات وروسته د خپل عمر پنځمه لسيزه تېروله او عمر يې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وفات وروسته اوږد شوی وو. هغه د زياتو او سترو اصحابو د جنازو په مراسمو کې ونډه درلوده چې وروستنۍ يې د ام لمؤمنين حضرت عائشې رضی الله عنها وه چې په ۵۸ هجري کال يې له دې نړۍ سره مخه ښه وکړه، ابوهريره رضی الله عنه يې د جنازې په مراسمو کې برخه واخيسته او هغه يې تر وروستۍ منزل پوري بدرګه کړه، له هغه وروسته ابوهريره رضی الله عنه ناروغ شو، احساس يې کړه چې مرګ يې رانژدې شوی دی، غوره يې بلله چې اجل يې ژر راورسيږي او دعا يې کوله چې الله تعالی يې له ٦٠ هجري کال وړاندې په خپل لوري وبولي. ورو ورو يې حال خرابېده، ټول بدن يې سست او کمزوری شو، باور يې وکړ چې دا ناروغي د مرګ ناروغي ده او ژر به دنيا پرېږدي.

په مدينه منوره کي هم د اخبره خپره شوه چې د هغه وخت د اسلام ستر پوه او حافظ صحابي ناروغ شوی او د مرګ د

شرف په حال کي دی. خلک يې له هر لوري پوښتني ته راتلل، د هغــه لپــاره يــې د جوړتيــا، ســلامتي او اوږده عمــر هيلــه څرګندوله، څو وکولای شي له هغه څخه نوی علوم زده کړي، ځکه ابوهريره رضی الله عنه داسي علم درلود چي هيڅ کله يې سرچينه نه وچېده.

په دې وختونو کي يې شاګرد ابوسلمه بن عبدالرحمن بن عوف پوښتني ته راغی، چي ويې ليدل د استاد حال يې ښه نه او درد يــې سخت دی، نارامه شو، اوښکي يــې لــه سترګو رواني شوې، هغه يې په غېږ کي ونيو او ويې ويل: يا الله! ابوهريره رضی الله عنه ته شفا ورکړې. خو ابوهريره رضی الله عنه وويل: الله! ما مړ کړې، ابوسلمه ته يې وکتل او ورو يې ورته وويل: "که مړ کېږې مړ شه، په الله قسم داسي وخت به راشي چي سړی به د ورور د قبر تر څنګ تېرېږي او هيله به کوي چي کاشکي دی د دې قبر څښتن وای."

يوه ډله خلک يې ليدلو ته راغلل، ابوهريره رضی الله عنه يې څېرو ته وکتل، اوښکي يې په سترګو کي راټولي شوې او په ژړلو يې شروع وکړه، هغوی د ابوهريره رضی الله عنه له ژړلو متاثر شول او يوه له هغوی څخه له ابوهريره رضی الله عنه څخه وپوښتل: ابوهريره! ولي ژاړې؟ ويې ويل: د سفر پــه اوږدوالــي او کمــې توښــې بانــدي ژاړم، ځکــه د داســي غونډۍ په مخ يم چي د ګړنګ څنډه يې يا د جنت مخ ده يا د دوزخ او زه نه پوهېږم چي ما به کوم لوري ته وغورځوي.

حاضرینو د هغه د خبرو له اورېدلو چي زړه يې د الله له ويري څخه ډک، نېکو کاره، صالح او داسي کس وو چي شيطان نه وي تېر ايستلی، حيران شول او د هغه له خبرو يې د عبرت درس واخيست.

اخر ابو هريره رضی الله عنه خپل زامن المحرر، محرز، عبدالرحن او بلال، همدارنګه غلامان او سعيد بن مسيب، مهم او لوی شاګردان يې را وغوښتل او هغوی ته يې داسي وصيت وکړ: کله چي مړ شم، ساندي مه راپوري کوئ، ځکه په رسول الله صلی الله عليه وسلم باندي چا ساندي ونه کړې، له شا مي اور ځای ته حرکت مه کوئ، په تلوار مي د هديرې په لور يوسئ، ځکه ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه واورېدل چي ويې ويل: کله چي د صالح سړي جنازه په تابوت کي کېښودل شي، وايي: ما ژر يوسئ، ما ژر يوسئ. خو متاسفانه کله چي د ناصالح سړي جنازه په تابوت کي کېښودل شي وايي: په ما دي هلاکت وي! ما چېرته وړئ؟ ما چېرته وړئ؟ له هغه وروسته ابو هريره رضی الله عنه وژړل.

چا ورته وويل: څه شی دي ژړوي؟

ويې ويل: "د سفر ليري والی او د توښې کموالی."

بيا يې زوی ته وصيت وکړ چي، په ذی الحليفه کي يي کور غلامانو ته ورکړي او له هغوی سره نېکي وکړي.

د ابوهريره رضی الله عنه د ژوند د وروستۍ ورځي سهار راورسېد، مروان بن حکم يې پوښتنې ته راغی او ويې ويل: الله تعالی دې شفا درکړی اې ابوهريره!

ابوهريره رضی الله عنه سترګې خلاصې کړې، پورته لوري ته يې وکتل او ويې ويل: "الله! زه ستا ملاقات خوښوم ته هم زما ملاقات خوښ کړه."

مروان يې له څنګه ولاړ شو او ولاړ. څو شېبې وروسته يې مطمئنه روح له ملکوت اعلی سره پيوست شوه او له دې نړۍ يې مخه ښه وکړه. د همېشني او ارام ژوند د ښه راغلاست په لور يې منډه کړه او تاريخ د ۵۹ هجري کال په حوادثو کې په زرينو کرښو وليکل: (په دې کال د وسي، يمني ابوهريره رضی الله عنه، د حضرت رسول صلی الله عليه وسلم ملګری او تکړه شاګرد، د علم د لاسته راوړلو، د الله د عبادت او نيکو کارونو له کولو وروسته له دې فاني نړۍ سره مخه ښه وکړه. ټولو خلکو باندې وژړل او د هغه له جدايي څخه سخت غمګين شول).

د ابوهريره رضی الله عنه د وفات خبره ډېره ژر په مدينه او شاوخوا کې خپره شوه، خلکو خپل کارونه پرېښودل او د ابوهريره رضی الله عنه کورته چې په ذی الحليفه کې وو، په منډه لاړل، د هغه تابوت يې په ګرمې او سوځوونکې لمر کې په اوږو کړ او د نبوي مسجد په لور يې د جنازې د مراسمو لپاره يووړ، خلکو د هغه د تابوت په وړاندې ارام حرکت

کاوو. د ماسپښین د لمانځه وروسته یې نبوي مسجد ته یووړ. د جنازې د مراسمو په مخ کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحاب او تابعین ناست وو، دوو صحابه وو عبدالله بن عمر او ابوسعید خدري چې له یو بل سره په ټنګ روان وو، په کراتو ویل: د الله تعالی رحمت دې په ابوهریره رضی الله عنه وي.

خلکو د مازدیګر لمونځ ادا کړ، د حضرت ابوهریره رضی الله عنه تابوت یې ټنګ ته راووړ، د مدینې امیر ولید بن عقبه امام شو او خلک ورپورې تر شا ودرېدل. خلک دومره زیات ول چې د جومات په انګړ کې نه ځایېدل، د جنازې لمونځ وشو، له لمانځه وروسته لومړی د حضرت عثمان رضی الله عنه زامنو دهغه تابوت د خلکو په ګڼه ګوڼه کې په اوږو کړ او د بقیع د هدیرې په لور روان شول، دا نوی مېلمه د مدینې په ستره هدېره کې چې د الله تعالی یو شمېر نېکو او نژدې بنده ګانو ته یې ځای ورکړی وو، خاورو ته وسپارل شو، خلکو په غم او ډېره ژړا له هغه سره خدای پاماني وکړه.

د بقیع پاکو روحونو د دې پاکې روح هر کلی وکړ او د هغه له حضور نه خوشحاله شول.

# د حضرت ابوهريره رضی الله عنه یاد ژوندی پاتي شو

حضرت ابوهريره رضی الله عنه له سترو کارونو نه ډک عمر تېر او اسلام له هغه څخه ستر انسان جوړ کړی وو. په خپل وخت او وروسته له هغه يې، دنيا د خپل وجود له فيض نه فايده منه کړه او دی لاړ. هغه تر دې وړاندې له چوپان پرته بل څه نه وو او چا ورته پام نه کاوو.

رېښتيا چي اسلام د خلکو او اسلامي امت لپاره څومره ستر کارونه کړي دي؟ که اسلام نه وای، خلک مړه کېدل، ضايع کېدل او تاريخ هېرول، خو د اسلام په سيوري کي هغوی همېشني شول او نومونه يې د تل لپاره پاتي شول.

ابوهريره رضی الله عنه د اسلام له نابغه ګانو او لويانو څخه وو، چي له سره يې هدف مشخص کړی وو، هغه ته د رسېدلو په لار کي يې له هيڅ تکليف څخه مخ وانه ړاوو او د هغه د لاس ته راوړلو لپاره يې سخت مشکلات وزغمل، اخر خپل هدف ته ورسېد.

هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم دژوند په دوران کي هر وخت هڅه کوله چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم پوه شاګرد او د الله د دين پوه او فقيد عالم واوسي. نوځکه يې هره شېبه له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه علم زده کاوو

او يادا وو يې. د دې مهم كار د لاس ته را ولو لپاره يې لوړې، خوارۍ او ډېرې تنګلاسې وزغملې او ويې شو ای کولای له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه زيات او بابرکته علم زده کړي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم له رحلت وروسته همېشه په دې فکر کې وو ، چې هغه علم چې يې زده کړی دی نورو ته ورسوي او عمر يې په دې لار يعني د امت په خير خواهي او د اسلامي احکامو په بيان کې مصرف کړ. هغه هڅه کوله چې هغه علم چې يې زده کړی دی عمل هم ورباندې وکړي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم سيرت د خپل ژوند قانون وګرځوي، نو ځکه د علم په نشر او تبليغ بوخت شو او د دې هدف لپاره يې هر تور او سپکه زغمله. څو ځلې تر ازمايښت لاندې ونيول شو او کامياب ترې ووت. د علم په طلب او نشر کې يې نه يوازې د کاميابي لوي عامل هڅه او هاند وو بلکې اخلاص، صداقت او د الله تعالی د رضا حصول هم وو. بايد ووايو چې هغه علم د الله تعالی د رضا په خاطر نشر کړ او په اخرت کې يې سر لوړي همېشه په نظر کې وه. نېکمرغه ژوند يې وکړ او نېکمرغه ومړ. او کـه دا خبره چې وايي: (کلام الخلق اقلام الحق) يعني د خلکو وينا الهي تقدير دی، سمه ده، ابوهريره په دې زمينه کې ستره ګټه او لويه کاميابي په لاس راوړې ده، ځکه د هغه د ژوند په مهال او له هغه وروسته يې د امت غوره خلک يعني علماء، فقهاء، محدثين او خدای

پالونکي په نېک نوم يادوي او نن ورځ يې هم هر ځای د خير يادونه کېږي.

سرور کائنات صلی الله عليه وسلم، ابوهريره رضی الله عنه ته وويل: "گمان مي کاوه چي هيڅوک دې سوال د پوښتني لپاره له ابوهريره رضی الله عنه پرته مستحق نه دی. ځکه د حديثونو د زده کولو په اړه مي ستا سخت حرص ليدلی دی."

د حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم ملگری طلحه بن عبدالله رضی الله عنه فرمايي: په دې کي شک نه لرم چي ابوهريره رضی الله عنه دې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه خبري اورېدلي وي او موږ دې نه وي اورېدلې.

ستر صحابي حضرت ابن عمر فرمايي: ابوهريره رضی الله عنه له ما څخه غوره دی، ځکه حديثونه چي بيانوي پرې علم لري. همدارنگه ابوهريره رضی الله عنه ته يې په خطاب کي وويل: ته تر موږ ټولو له رسول الله صلی الله عليه وسلم سره ډېر وخت وې او تر موږ ټولو دې د هغه صلی الله عليه وسلم حديثونه غوره ياد کړي دي.

ستر عالم ابو عبدالله الشافي فرمايي: ابوهريره رضی الله عنه له هغو ټولو خلکو چي د هغه په وخت کي يې حديثونه روايت کول د قوي حافظې درلودونکی وو.

اميرالمؤمنين امام بخاری فرمايي: له اته سوو زياتو عالمانو له ابوهريره رضی الله عنه څخه په نقل، احاديث

روايت كول، هغه په خپل وخت كي له ټولو هغو كسانو چي حديثونه يې روايت كول د قوي ياد څخه برخمن وو.

امام ذهبي وايي: ابوهريره رضی الله عنه د هغه څه په ياد كي چي له رسول صلی الله عليه وسلم څخه يې اورېدلي يا ليدلي وي د هغه مبارك عين كلمات رانقل كړي دي او د غوره شخصيت لرونكی دی.

امام ابن كثير فرمايي: ابوهريره رضی الله عنه د قوي حافظې، خاص عبادت، صداقت او لويي ښښتن وو. هغه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د حديثونو معروف راوي او له حافظينو اصحابو څخه وو.

د بخاري شارح شيخ الاسلام ابن حجر وايي: ابوهريره رضی الله عنه له ټولو هغو خلكو نه چي د هغه په وخت كي يې حديثونه روايت كول، حافظه يې قوي وه او د اصحابو له جملې نه يو وه هم د ده په اندازه احاديث نه دي روايت كړي، دا افتخار دده لپاره بس دی چي نوم يې لس ګونه زره ځله په اسلامي دېوانونو كي راغلی دی او له څوارلس پېړيو وروسته بيا هم د زرګونو علماوو او شاګردانو په ژبه د هغه نوم جاري دی.